

د پوهنې وزارت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی ریاست

# د ښوونکي کتاب

# د هنـر د تدریس لارښود

## اووم ټولگی





درسي کتابونه د پوهنې په وزارت پورې اړه لري په بازار کې یې اخیستنه او خرڅونه په کلکه منع ده. له سرغړونکو سره قانوني چلن کیږي.

د چاپ کال: ۱۳۹۶ هـ ش.




د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د روزنې معینیت

د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

# د ښوونکي کتاب

# د هنر د تدریس لارښود

## اووم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۶ . ش

**لیکوالان:**

- سیدانورمیچنخیل د هنرونو دېپارتمنت علمي غړی
- محمد غالب الله یار د هنرونو دېپارتمنت آمر
- محمد ظاهرطاهري د هنرونو دېپارتمنت علمي غړی
- نفیسه پوپلزۍ د هنرونو دېپارتمنت علمي غړې

**علمي او مسلکي ایډیټ:**

- د هنرونو د دیپارتمنت علمي او مسلکي غړي.

**د ژبې ایډیټ:**

- د مؤلف مرستیال محمد قدوس زکوخیل د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف د ریاست علمي غړی.

**دیني، سیاسي او کلتوري کمېټه:**

- ډاکټر عطاء الله واحدیار د پوهنې وزارت ستر سلاکار او د نشراتو رئیس.
- حبیب الله راحل د تعلیمي نصاب د پراختیا په ریاست کې د پوهنې وزارت سلاکار.
- مولوي قیام الدین کشاف
- صدیق الله حبیبي د دیني علومو د دیپارتمنت غړی.

**د څارنې کمېټه:**

- دکتور اسدالله محقق د تعلیمي نصاب، د ښوونکو د روزنې او د ساینس مرکز معین.
- دکتور شیر علي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې مسؤول.
- د سرمؤلف مرستیال عبدالظاهر گلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی رئیس.

**طرح او ډیزاین:**

- رحمت الله غفاري



## ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې
هر بچی يې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی
د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو
د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، ګوجر دي
پامیریان، نورستانیان

براهوي دي، قزلباش دي
هم ايماق، هم پشه يان

دا هېواد به تل ځلېږي
لکه لمر پر شنه آسمان

په سينه کې د آسيا به
لکه زړه وي جاويدان

نوم د حق مودی رهبر
وايو الله اکبر وايو الله اکبر

**بسم الله الرحمن الرحیم**

## د پوهنې د وزیر پیغام

## گرانو استادانو او ښوونکو،

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختیا او پرمختګ بنسټ جوړوي. تعلیمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د علمي پرمختګ او ټولنې د اړتیاوو له مخې چمتوکېږي. څرګنده ده چې علمي پرمختګ او ټولنیزې اړتیاوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعلیمي نصاب هم د وخت له غوښتنوسره سم علمي او رغنده پراختیا ومومي. البته نه ښايي چې تعلیمي نصاب د سیاسي بدلونونو او د اشخاصو د نظریو او هیلو تابع شي.

د ښوونکي د لارښود داکتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې بنسټ چمتو اوترتیب شوی دی. د تدریس د نویو میتودنو له مخې فعالیتونه او معلوماتي مواد په کې ورزیات شوي دي چې په ډاډ سره به د زده کړې په بهیر کې د زده کوونکو د فعال ساتلو لپاره ګټور او اغېزمن وي.

هیله من یم د دې کتاب منځپانګه، چې د فعالې زده کړې د میتودونو د کارولو له لارې تالیف او چمتو شوې، ستاسو درنو استادانو دګټې وړ وګرځي. له فرصت څخه په استفادې د زده کوونکو له میندو او پلرونو څخه غوښتنه کیږي د خپلو لوڼو او زامنو په باکیفیته ښوونه او روزنه کې پرله پسې مرسته وکړي چې په دې توګه د پوهنې د نظام موخې او هیلې ترسره شي او ځوان نسل او هېواد ته ښې پایلې او برياوې ور په برخه کړي.

زموږ ګران استادان او ښوونکي د تعلیمي نصاب په رغنده پلي کولو کې ستره دنده او درونږ مسؤولیت لري.

د پوهنې وزارت تل زیار کاږي چې د پوهنې تعلیمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دین له بنسټونو او ارزښتونو، د ټولنې د څرګندو اړتیاوو، ملي ګټو او وطنپالنې له روحیې او د ساینس او ټکنالوژۍ له نوو علمي معیارونو سره سم پراختیا ومومي.

ددې سترې ملي موخې د تر لاسه کولو لپاره د هېواد له ټولو علمي شخصیتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده کوونکو له میندو او پلرونو څخه هیله لرم چې د خپلو نظریو او رغنده ګټورو وړاندیزونو له لار ې زموږ له مؤلفانو سره د درسي او د ښوونکي د لارښود دکتابونو په لا ښه تالیف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه، چې ددې کتاب په چمتو کولو او ترتیب کې یې برخه اخیستې او همدارنګه له ملي او نړیوالو درنو موسسو او نورو ملګرو هېوادونو څخه، چې د نوي تعلیمي نصاب په چمتو کولو او تدوین او د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په چاپ او وېش کې یې مادي یا معنوي مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم او د لا نورو مرستو هیله یې لرم.

ومن الله التوفیق

دکتور اسدالله حنیف بلخي

د پوهنې وزیر

# لړلیک

**سرلیک................................................................................................................................مخ**


لومړی څپرکی: د درسي پلانونو د کلیاتوپېژندنه:........................................................ ۱
۱– ۱– په افغانستان کې د ښوونې اوروزنې عمومي موخې:................................................ ۲
ج: فرهنگي اوهنري موخې:......................................................................................... ۳
هـ : اقتصادي موخې:.................................................................................................. ۴
۲– د درسي پروگرام پېژندنه:......................................................................................... ۵
۲–۲– د منځنۍ د ورې هنرله ۷ تر۹ ټولگي پورې.......................................................... ۶
د هنرد مضمون نتیجې ( د هنر مضمون عمومي موخې)................................................ ۷
۵– ۲– د هنر درسي پروگرام ته کتنه :........................................................................... ۸
– ۲– د اووم ټولگي د هنرد زده کړې عنوانونه ........................................................... ۹
۷– ۲– د هنر د زده کړې کړنلاره: ................................................................................ ۱۱
۱۰– ۲– د ارزونې وسیلې............................................................................................. ۱۴
ج – د لفظي ستاینې درجې. ....................................................................................... ۱۵
د ویم څپرکی:............................................................................................................. ۱۵
۱– کلنۍ پلان:............................................................................................................ ۱۶
ب – د اووم ټولگي د عنوانود تدریس لارښود جدول ...................................................... ۱۷
جدول: د سږوسیمو د اووم ټولگي د هنر مضمون کلنی پلان ........................................... ۱۸
۳ جدول: د گرموسیمو اووم ټولگي د هنر مضمون کلنی پلان............................................. ۱۹
۱– تجسمي هنرونه: د ښوونکي لارښود ......................................................................... ۲۰
رنگ........................................................................................................................... ۲۱
د رنگونوترکیب: ......................................................................................................... ۲۲
اوبدنې یا جوړښتونه: .................................................................................................. ۲۳
تناسبونه:.................................................................................................................... ۲۴
لرې اونژدې: ............................................................................................................... ۲۴
ریتم: .......................................................................................................................... ۲۵
هنري وسیلې:............................................................................................................... ۲۶
۲–۲ – په متوسطه یامنځنۍ دوره کې انځورگري: ............................................................. ۲۷
۲– ۲– د منځنۍ دورې انځورگري.................................................................................. ۲۸
۳–۲– لاسي کار ........................................................................................................... ۳۱
د اتصال یا ترکیب ډولونه:............................................................................................ ۳۲
په ټولگي کې د کار کولو سپارښتنې: ............................................................................. ۳۳
۴–۲– د هنر له تاریخ سره بلدتیا..................................................................................... ۳۴
۳– دتدریس د پلان لارښود.......................................................................................... ۳۵
خط............................................................................................................................. ۳۶
په خطونو انځورگري.................................................................................................... ۳۸
له ( اسلام څخه مخکې) د افغانستان او نړۍ د هنر تاریخ ................................................ ۴۰
له هنري وسیلو سره بلدتیا ........................................................................................... ۴۲
سطح، شکل او حجم ..................................................................................................... ۴۴
په گوتو ټاپه کول:......................................................................................................... ۴۶

د سیمې گرى جوړیدل ........ ۴۸
د ډبرو د دورې هنر ........ ۵۰
رنگونه........ ۵۲
د میوې د لوښي نقاشي........ ۵۴
د لرغونو ځایو بین النهرین، ایران او مصر هنرونه: ........ ۵٦
له رس ختې د ساده حجمونه جوړیدل........ ۵۸
د خپلې خوښې د فصل انځورگري یا نقاشي: ........ ٦۰
د گوتو د فشار په واسطه له رس ختې څخه د حجم جوړول........ ٦۲
د لرغونو ځایونو( هندوستان، چین او جاپان) هنرونه ........ ٦۴
اوبدنې، (جوړښتونه)........ ٦٦
د ختینو حجمونو رنگول ........ ٦۸
د لرغوني یونان او روم هنرونه........ ۷۰
د بیلابیلو سیمې حجمونو جوړیدل: ........ ۷۲
د مسیحیت هنر........ ۷۴
له طبیعي موادو څخه دلاسي کار جوړول: ........ ۷٦
د افغاني هنرمندانو پیژندنه........ ۷۸
دافغانستان له ملي موزیمونو سره بلدتیا ........ ۸۰
د اووم ټولگي دمنابعوفهرست........ ۸۱

## لومړی څپرکی: د درسي پلانونو د کلیاتوپېژندنه:

**۱- د پیل خبرې**

**د ښوونې او روزنې ارزښت او د ښوونکي رسالت**

پوهانو ښوونه اوروزنه په بېلابېلو ډولونو تعریف کړې ده. ځینې پوهان ښوونه او روزنه د ارزونې او د فرهنګي میراثونو پراختیا له پخوانیو نسلونو څخه نوي نسل ته لېږد ول بولي. ځینې نورو ښوونه او روزنه په هر وګړي کې حقونو او قابلیتونو اخیري تشکیل بللی دی. ځینې نور ښوونه او روزنه د پټواستعداد ونو ښکاره کول بولي، ځینې نورپوهان وایي: چې ښوونه او روزنه په ټولنه کې یو وګړی د ښه ژوند کولو لپاره چمتوکوي، چې په ټولنه کې له آدابو، دودونو عقاید و او افکارو سره بلد شي. په نننۍ نړۍ کې لویو پوهانو له دې نه هم ګټورې نظریې وړاندې کړې دي چې نقل یې په دې سریزه کې ځانګړی ارزښت لري.ځینې پوهانو ښوونه او روزنه د وګړیو د ګڼ شمېر، لکه: (جسمي، عقلي، عاطفي، ټولنیز، کاري، هنري او اخلاقي) اړخونو لاربښود بولي.

جان د یوي، ښوونه او روزنه په تجربو باندې نوې کتنه چې په وګړیو کې د ودې او تکامل مؤجبات برابروي ښودلې ده.

دا ټول تعریفونه له ځینو اړخونو سم دي. خو بسنده نه دي. پوهان د ښوونې او روزنې له زده کوونکو څخه له دې هم زیاته هیله لري، هغه دا چې د علم او هنر د زده کړې ترڅنګ له فرهنګ، آدابو او د ود ونوسره هم بلدشي، ټولنې ته په فعال ډول وردننه کیدل، عاد تونه، مهارتونه او د فکر کولوځانګړې لارې تر لاسه کوي، ترڅو د استعدادو د غوړېد و په نتیجه کې خپلې وړتیاوې ښکاره کړي، د کار کولو مهارتونه د اقتصادي اړتیا د پوره کولو لپاره او د ټولنې د اقتصادي اړتیاوو د پوره کېد و زده‌کړه وکړي. له بلې خوا نه هیله کېږي چې د زده کوونکو فزیکي اړخونه چې چاپیریال پېژند ونکو، روان پېژند ونکو، ټولن پوهانو، فلاسفه و او د اخلاقو پوهانو لخوا پېژند ل شوي دي، د ښوونې او روزنې په لاربښوونه وده او پراختیا مومي، د اسلامي پوهانوله نظره ښوونه او روزنه، د یوه کامل انسان روزنه ده. کامل انسان هغه څوک دی، چې د ده فزیکي اړخونه د توان ترحده پورې وده او تکامل وکړي. د ښوونکو مهمه د نده، د انسان د عادي او معنوي اړخونو وده، بېلابېلې درسي موضوعګانې، هره یوه د انسان د وجود په ځانګړو اړخونو پورې اړه لري. د ښوونې او روزنې موخه دا نه ده چې د زده کوونکو ذهن یوازې له مختلفو حقیقتونو او واقعیتونو څخه ډک کړي او یا زیات معلومات ترلاسه کړي. بر عکس ښه زده کوونکی هغه دی چې په بېلابېلو برخوکې یې وده او تکامل کړې وي او دا یې زده کړې وي چې څنګه یې زده کړي. دا ډول خلک په ټول عمر کې د زده کړې په فکرکې وي. د ښوونې او روزنې پروګرام دا نه دی چې یوازې صفحه ختم شي یا څو زده کوونکي په پام کې ونیول شي، د نورو زده‌کوونکو پروا ونه ساتل شي. د ښوونې او روزنې د نظام مطلب دا دی چې ټول زده کوونکي په پام کې ونیسي.

د ښوونې او روزنې موخه او معنا دا ده چې د پوهنې ټولو موخو ته پاملرنه وکړي، له بلې خوا ښه ښوونکې د پوهنې ټولو تحصیلي د ورو او ټولو عمومي موخو، بېلابېلو درسي فعالیتونو او پرګرامونو ته پاملرنه کول دي.

زده کوونکی د تنکۍ ځوانۍ په د وره کې د خاصوځانګړتیاوولرونکی دی. تنکي ځوانان په بدني لحاظ یوې نوې د ورې ته چې جسمي تغییرات پکې راځي، داخلیږي. په دې د وره کې د زده کوونکواړیکې یو له بل اوهمزولوسره ځانګړي بڼه پیداکوي. په دې د وره کې زده کوونکي د ټولنیزو کارو او د مختلفوقومونو له دودونو اورواجونو سره د زده کړې لپاره تیاری نیسي. زده کوونکي په دې د وره کې د عاطفې اومهربانۍ له مخې له نورو سره د ښوکارو د سرته رسولو لپاره له مرستې څخه خوند اخلي. د وی غواړي چې په خپلواک ډول هغه کارونه چې په د وی پورې اړه لري، سرته ورسوي.

د وی علاقه لري چې پر پټو رازونو وپوهیږي، د طبیعت په هکله او د معنا علم زده کړې ته چمتووالی ښکاره کوي، د د وی مغزي ذوق د کوچینیوالي د دورې په پرتله زیاتیږي. تنکي ځوانان علاقه لري چې خپل پټ احساسات په مختلفو ډولوبیان کړي. دوی بېلابېل مهالونه د زده کړې لپاره پیداکوي، چې دا وختونه د ښوونکي لپاره په زړه پورې نه دي. مګر د ښوونې اوروزنې له مخې له لوړارزښت څخه برخمن دي. یولایق اوتکړه ښوونکی له دې وختوڅخه د ودې په مادي اومعنوي اړخونو کې د خپلو زده کوونکو په مختلفو هنري، تعلیمي، ټولنیز، اخلاقي، عاطفي، دیني، جسماني او عقلاني برخوکې ډېره ګټه اخلي.

### ۱- ۱- په افغانستان کې د ښوونې اوروزنې عمومي موخې:

په افغانستان کې د ښونې اوروزنې عمومي موخې: د افغاني ټولنې، د علم او پوهې د پراختیا په پام کې نیولوسره ښوونه اوروزنه د وګړو لپاره اړینه ګڼل شویده. لاندې ټکي د ښوونې اوروزنې مهمې ځانګړتیاوې دي.

**الف: عقیدتي او اخلاقي موخې:**

- د ایمان، عقیدې او د اسلام د مقدس دین بنسټونه، د اسلامي لید پراختیا د افراط اوتفریط پرته د قرآني ښوونې او د پیغمبرعلیه السلام د ارشاداتو پربنسټ .
- د خدای (ج) د پیژندلو په منظور د ځان پېژندنې د روحیې رامنځ ته کول.
- په نفس د باور د روحیې پیاوړي کول او د اخلاقي ښیګڼوضروري کول.
- د نظم او د سپلین د روحیې ټینګښت او د قانوني ارزښتونوپیاوړي کول.
- د ښوونې اوروزنې او د ټولنیزو ارزښتونو په اړه د مسؤولیت احساسول .

**ب: ښوونیزې اوعلمي موخې:**

په پای کې د زده کړې لړۍ چې د تعلیمي نصاب اونورو هغو فعالیتونو چې له تعلیمي نصاب څخه پورته دي رامنځ ته شي، زده کوونکي بنیادي پوهه ترلاسه اولوړوفکري مهارتونو ته پراختیا ورکړي. نوځکه دا مهمې علمي اوښوونیزې موخې په پام کې نیول شوي دي.

- د ښوونیزومهارتونوتقو یه اوترلاسه کول، لکه : اورېدل، غږېدل، لوستل، لیکل، د عددونوپه کارول او په رسمي او بهرنیو ژبوحسن خط.

- ژورفکر، مطالعه، څېړنې اونوښت ( ابتکار) په علمي، هنري، فرهنگي او فني برخوکې د فکري وړتیا ووتقویه.
- د علومو، د نوي ټکنالوجي د فنونوزده کړه او د اړینو مهارتونولاس ته راوړل.
- د موضوعگانواو د وگړنیزواوټولنیزوستونزولپاره د مهارتونو زده کړه.

## ج: فرهنگي اوهنري موخې:

- د هنراوفرهنگ پېژندنه، لکه: ( لاسي صنایع، سکوي، خامک گنډنه، اوبد ل، مهند سي، حکاکي، نقاشي، د کورښکلا(د یکوریشن) او نور نړیوال سالم هنرونه او د هنري استعداد ونو، ښکلاپېژندنې، روزنه اولاربښوونه.
- د افغانستان اونړئ د ملي هنرونواو فرهنگ په تاریخ پوهیدنه.
- د تمرینونواوفعالیتونو په واسطه د هنري استعداد ونوپراختیا.

**د : مدني او ټولنیزموخې:**

په زده کوونکوکې د لاندې موخو پلي کول، د یوې کورنۍ د غړو، د موقتي ذهني پراختیا په کلي، منطقې، ملي او نړیوالو برخوکې مرسته کولای شي.

- د اسلامي اخلاقو پر بنسټ د کورنیواړیکوپه مساوي توگه ټینگښت، د ملي نوامیسود ساتنې د روحیې پیاوړي کېدل.
- د ورورگلوي، مرستې، سولې، ټولنیز عدالت او د ملي اونړیوالو پخلاینې د روحیې ټینکښت :
- د خیرغوښتنې د حس ټینگښت، د اخلاقي فضایلو وړتیا، له جنگ، انسان وژنې سره ضدیت او د مخدره توکو وپه ضد د روحیې پیاوړي کیدل.
- قانون ته درناوی او د هغه رعایت کول د هرډول تبعیض، لکه: قوم، ژبې، جنس، ټولنیز اواقتصادي موقف، سیاسي او داسي نورو پرته د ټولو له حقونوپلوي.
- په دیني، هنري، فرهنگي، ټولنیزو او اقتصادي چاروکې د مشارکت د روحیې پیاوړي کول.
- د انتقاد کولواوانتقاد منلو، حوصله مندي،د نورو رایو، افکارو ته د درنښت روحیې ته پراختیا ورکول.
- د هروگړي شخصیت، انساني کرامت، په ټولنیزو چاروکې د اخلاقي آدابو روحیې ته وده او پراختیا ورکول.
- په سوله ییز ډول د مسلو حل او د اختلافونو، جنگ او جگړو د روحیې له منځه وړل.
- یو د بل د پوهېدني فرهنگ د روحیې رامنځ ته کول.
- د نړیوالې ټولنې له لاس ته راوړنو، علمي، تخنیکي تجربوڅخه دگټې اخیستنې د روحیې پیاوړي کول.
- انساني کرامت ته درناوی او پر بشري حقوقو د پوهېدنې د روحیې پیاوړي کول.
- د په شاتگ د نه منلو روحیې پیاوړتیا.

- د ښځو انساني مقام ته درناوي او د دوی د حقوقو د پلویتوب د روحیې پراختیا.
- د لویانو، همسایه ګانو، هېوادوالو او د مدني ټولنو حقونو ته د درناوي د روحیې پیاوړي کول.

**هـ : اقتصادي موخې**:

- د کورنۍ له اقتصاد سره د ټولنې د اقتصادي پراختیا درک کول او له هغو سره اړیکې ښوول.
- د کارپه ارزښت او اهمیت پوهېدنه او په ګټوروکاروکې ونډه اخیستل.
- د زیرمه کولو، قناعت او له بې ځایه ډېرلګښت څخه د پرهیزد روحیې پیاوړتیا.
- د طبیعي شتمنیواو د هغې د را ایستلواو ګټه اخیستنې د روحیې پیاوړي کول.

**۲- ۱- د منځنۍ د ورې عمومي موخې د ۷ تر۹**:

زده کوونکي چې لومړنۍ د وره پاي ته ورسوي، لـه خپلـې خوښـې سـره سـم پـه دې ښـوونیزه اوروزنیـزه د وره کـې شاملېږي. ددې د ورې اصلي او اساسي مـوخې دادي چې د زده کوونکـود ښـوونې اوروزنـې اسـتعداد، د هېـواد لـه اړتیاوو او امکاناتوسره سم د ژوندانه بېلابېل اړخونه په لاندې ډول په پام کې ونیسو.

**۱-** د ښوونې او روزنې د تېرو د ورو تقویه او بلې د ورې ته تیاری ونیسي.

**۲-** د معلوماتو پراختیا او په دیني، اخلاقي اوعقید تي مسئلوژوره څېړنه او له اسلامي پوهې سره بلدتیا.

**۳-** د خدای (ج) د پېژندنې لپاره د ځان پېژندنې روحیې ته پراختیا ورکول.

**۴-** په بېلا بېلو درسي څانګو کې د زده کوونکود استعدادونو پېژندل.

**۵-** د زده کوونکود پلټنې د حـس پراختیـا، د اوسـید لوچاپیریـال، د طبیعـت قـوانین، د بـشر لـه پـرمخ تللـو تجربوچې له ساینسي مفهومونو او بنسټونو سره برابرې وي، پراختیا ورکول.

**۶-** د هېواد د رسمي ژبوته پراختیا،د مورنیوژبوتقویه، د خارجي ژبوټینګښت او د زده کوونکود علمي سـویې لوړول.

**۷-** د ورور ګلوي مرستې، سولې، ملي پیوستون ټینګښت، د جنګونو،نا امنیو او له مخدره مـوادو سـره مبـارزه، د هرډول توپیر پرضد مبارزه کولو او زده کوونکي سالمو سیالیو ته رابلل.

**۸-** د زده کوونکو له علاقې او استعداد سره سم د کارد انتخاب، تصمیم نیولود مهارتونود روحیې پیاوړي کول.

**۹-** پـه دینـي، هنـري، فرهنګـي اوټـولنیزو فعـالیتونوکې د مـسؤولیت منلـو د روحیـې روزنـه او د زده کوونکـو د معلوماتوپراختیا.

**۱۰-** د کارپه برخه کې د زده کوونکو د خوښې په څانګو د دوی روزنه او عملي چاروته یې هڅونه.

**۱۱-** په زده کړه کې د خپل ځان د ارزونې د وړتیا د کچې لوړول

**۱۲-** خپلې روغتیا ته پاملرنه.

**۲- د درسي پروګرام پېژندنه**:

**۱- ۲- هنرڅه ته وايي ؟**

د هنرپه اړه د بېلا بېلو پوهانو له خوا بېلا بېل تعریفونه وړاندې شوي دي. خلکو د خپل توان علمي او هنري سيني ،خپلې خوښې، فسلفې، ټولنيزو او سياسي استعدادونو له مخې دا کلمه تعبير او تفسيرکړی ده.

د هنرکلمه په سانسګريټ کې له د و(سو) د نيک په معنا چې کمال او ښيګڼې ولري د (نر) يا(نره) په بڼه راغلي ده، چې د ( اهورامزدا) په صفتونوکې د نيک اوښه په معناده. له اسلامي دورې وروسته د (هنر) په بڼه راغلې ده چې د کمال اوفضيلت په معناده. په دايرة المعارف کې د نقاشي، طراحی، ګرافيک، معماری، شعر، ډرامې، سينما او داسې نورو ته وايي. متفکراومبتکر شخصيتونه په يوه قاطع تعريف باندې يوه خوله شوي نه دي. د هنر په اړه مختلفو پوهانو تعريفونه کړي چې څو نمونې په دې ډول دي:

**۱-** هغه څه چې انسان په خپله جوړوي، هغه څه چې دی يې له خپل چاپيريال څخه اخلي او د هغې جوړونې ته د وام ورکوي، هنر وايي.

**۲-** هنر له ښکلاپېژندنې څخه عبارت دی.

**۳-** هنر د فکري روزنې، نفساني ودې او اخلاقوسترعامل دی.

**۴-** هنريوه ټولنيزه ښکارنده پديده ده چې ټولنې په ګډه (منځ) کې رامنځ ته کېږي

**۵-** هنر ژوند دی اوبې هنره ژوند نا شونی دی.

**۶-** هنر له يوه نسل څخه بل نسل ته پيغام وړونکی دی.

**۷-** هنر ناارامو او قهرجنوخويونوته مسکن د ارودي.

**۸-** د بشر احساس پېژندنې ته هنر وايي.

**هنري برخې**: هرانسان له خپل چاپيريال څخه د ليدنې او فکر اخيستې زيږنده ده. په عمومي ډول په درو برخويوله بله سره جلاکېږي. يا يو له بل څخه فاصله نيسي.

**الف**: **خطي هنر، صوتي هنر اوحرکي هنر**.

خطي هنر: په خطي هنرکې انځورګري، رسامي، خطاطي، حکاکي، ميناتوري، ګرافيک او مهند سي شامل دي. هرهنري فعاليت چې په نقطه، خط اورنګ پيل شي، پر يوه مخ اوسطح طرح اوډيزاين شي، له خطي هنر څخه عبارت دی.

**صوتي هنر**: د انسان له حنجرې او يا د موسيقي له الې څخه اوازايستل په صوتي هنرکې حسابېږي چې د صوتي هنر په واسطه موږ ښه اوازويونکي او د موسيقي الوغږوونکي د هنرمندانوپه نوم ياد وو .

حرکي هنر: داډول هنر يوازې په حرکت پورې اړه لري. په ډرامو، اکټ اوتمثيل، د تمثيلي پارچو اجراکول، د سرکسوموزون حرکتونه، اکروباتيک ښکلي او پر زړه پورې جمناستيک، لکه: لمبل اونورې نندارې چې علمي، تربيوي اومسلکي جنبه ولري، د حرکي هنر په نوم ياديږي.

### ۲-۲- د منځنۍ د ورې هنرله ۷ تر ۹ ټولګي پورې.

له پورته يادو شوو هنرونوڅخه، نقاشي اولاسي کارونـه چې پـه منځنـۍ د وره کـې د زده کوونکـود علاقـې وړ دي، په ښوونځيوکې د هغو د کارولوشرايط برابر دي ، انتخاب اوپـه درسـي پروګـرام کـې راغلـي دي. د دې ځانګو په څنګ کې زده کوونکي د هنرونواو د هېواد له هنرمندانو سره بلديږي، همدارنګه يوځغلنده پام د نړۍ د هنر تاريخ ته هم لري.

### ۳- ۲- د هنرد زده کړې ارزښت.

د آرت د مضمون تدريس، د يوه حياتي اومسلکي فن په توګه چې د تخيل د قوې روزنـه، ځيرکتيـا، حـواس، فکرکولواو د تفکرد فکري ورتياوو روزنه ده، د ښکلاحس روزي او د رواني آرامۍ سبب ګرځي.له بلې خوا د آرت مضمون د ټولوساينس اوټولنيزو مضمونونومتمم اوبـشپړونکي دي، د هنـر ښـوونه د يـوه ضـروري جزپـه توګه په ټوله نړۍ کې د زده کوونکو او تنکيو ځوانانو لپاره يو قبول شـوی اومـسلم حـق دی. د هنرمـضمون د دې لپاره تدريس کېږي چې زده کوونکوته د دې حق ورکړل شي، چې خپـل خيـالات اوعواطـف پـه آزاد ډول د رنګونو، خطونو، شکلونو، لاسي کارونو، خبرو او بيان، بـدني حرکتونـو، هيکلونـو، پـه واسـطه ښـکاره کـړي. د هغې په څنګ کې د دوي ابتکاري توان پراختيا مومي چې د چاپيريال پر ټـولنيز اواقتـصادي جوړښـت مثبـت تاثير غورځولی شي. د دې ټولنيز اوګټورمضمون اړتيا په لومړنيو او منځنيو دوروکې احساس کېږي، نـو ځکـه د دې مضمون په ښوونه باندې ټينګارشوی دی.

هنري فعاليتونه د زده کوونکوذهن په تعليمي نصاب کې د شاملو مضمونونود ښې زده کړې لپاره پراختيا مـومي، د نوښت حس، د ليدلو قوه، په نفس باور، ښکلاپېژند نه اوعلاقه منـدي راپـاروي او دوی تـه جرئـت ورکـوي چې د مهارتونوترڅنګ د شيانو کارونه او ښه جوړول زده کړي، دوی استعداد لرونکي متفکر او په ځان باوري کوي، چې د کارپه نړۍ اوپه ورځنيوفعاليتونو کې د پام وړ پراخوالی ترلاسه کوي. د کارونوپه سـرته رسـولوکې ګټورثابتېږي. د اوس مهال په ښوونه اوروزنه کې هنري فعاليتونوحياتي ښه غوره کړي ده، نوځکه هرهغه څه چې زموږ د ژوندانه اوورځنيوکړو وړو اوبلاخره زموږ د ځوانانود استعدادونو له پراختيـا سـره اړيکـې لـري، د هغـو تدريس ته اړتيا احساسېږي.

**۴- ۲- د هنرد زده کړې موخې:**

د هنر مضمون له مفرداتوڅخه جوتېږي چې د تعليمي نصاب په مسلسل اومنطقي مراعات هنري روزنه ښواوبد و، د ښکلي اوبد رنگو د توپير پېژند لولپاره يوارېن مضمون چې موخې يې مثبتې او د ټولومضمونو په متنونوکې يې شکلونه اوانځورونه بې تاثيره نه دي او د هرمضمون لپاره ضروري دي.

**د هنر مضمون پايلې( د هنر مضمون عمومي موخې)**

- د هنر له تدريس وروسته له زده کوونکوڅخه غوښتنه کېږي چې:
- د طبيعت اوکائيناتو د پيدايښت په هکله د خداى (ج) د لويوالي اوعظمت پېژندنه احساس کړاى شي.
- د بنيادي مهارتونوپېژندنه.
- د هېواد اونړۍ د هنري او فرهنگي ميراثونو پيژندنه او په بداينه ( غني کولو) باندې پوه شي.
- رواني احساس او له هنرسره د زده کوونکو فکري بلدتيا پيدا شي.
- د خپلوستونزو د حلولو احساس پيدا کړاي شي.
- په ورځيني ژوند کې د زده کوونکود ښواوبد ود توپير احساس پياوړي کول.
- په ورځيني ژوند کې د زده کوونکو د استعدادونود پياوتيا لپاره له زمينې برابرول.
- د ديني، هنري اوفرهنگي مناسباتوله مخې له وطن سره مينه، له هنرسره مينه، له فرهنگ سره د مينې احساس پياوړي کړاى شي.
- د هنري فعاليتونو په وجه د هېواد په اباد ۍ کې ونډه واخيستلى شي.
- له عصري اوپرمختللو اوساده مواد وڅخه گټه واخيستلى شي.

**ب- په منځنۍ د وره (۷، ۸ او نهم ) ټولگيو کې د هنر زده کړه.**

**له تدريس وروسته له زده کوونکوڅخه غوښتنه کېږي چې :**

- د کار د تر سره کولو له مهارتونو کارواخيستل شي.
- د طبيعت اوکائناتود پيدايښت په هکله د لوى خداى (ج) لويوالي او عظمت وپيژندلى شي.
- د هنراوفرهنگ بډايول او د هغو په اړه له ځيرنوسره بلدتيا پيدا کړاى شي.
- زده کوونکو له روحي احساساتو او خيالونو سره بلدشي.
- د ستونزو د حل احساس ورسره پيدا شي.
- په ورځنيوچاروکې يې د ښو او بدو د پيژندلو روحيه پياوړي شي؟
- په ورځنيوچاروکې د زده کوونکو استعدادونو ته د ودې زمينه برابره کړاى شي.

- د پېښنو شووستونزو د حل لارې چارې پیدا کړای شي.
- د دیني، هنري او فرهنګي مناسباتوله مخې لـه هېـواد سـره مینـه، هنرسـره مینـه، فرهنـګ سـره د مینـې احـساس وکړای شي.
- د نړۍ له پرمختللو،عصري او ساده مواد وڅخه ګټه واخیستلی شي.

د پورتنیو موخو په پام کې نیولوسره زده کوونکي باید له دې شرایطو سره سـم هنرمـضمون لـه زده کـړې څخـه وکولای شي چې خپل ورځني مشکلات حل کړي . ښوونکی هم باید له دې چوکاټ څخه د باندې ونه وځي اونه له دې کارونو څخه وروسته پاتې شي.

**۵- ۲- د هنر درسي پروګرام ته کتنه** :

د هنرمضمون د نورومضمونوترڅنګ یوخپلواک مضمون دی، چې د منځنی د ورې په تعلیمـي پـلان کـې لـه ۷څخه تر۹ ټولګي پورې شامل دی او په اونۍ کې یوساعت ورته ځانګړی شوی دی.

**په ټولګي کې د هنر د مضمون مفردات او تدریس**: زده کوونکي باید ارزښتناکې هنري تجربې ترلاسـه کـړي زده کوونکي باید په ژورې پاملرنې سره، تمرین، څېړنې او د ومداره هنري زده کړه وکړي، هنري اثر درک کـړي پـه دې وپوهیږي چې څه ډول یوهنري اثروکاږي، د یو هنري اثرپه هکله څـه ډول قـضاوت وکـړي، هنـري فعالیـت زده کوونکوته باید معنالرونکی اوخوند وروي، ترڅوهغه په ډېـره مینـه ترسـره کـړي او خپلـې هنـري تجربـې لـه ټولګي څخه د باندې وکارولی شي.

د تېرو او اوسنیووختو د هنري آثارو په لیدو خپلې تجربې پیاوړي کړي، د هنري آثـارو د پیژنـد ګلوی پوهـه یـې زیاته شي او له پرمختللي تکنالوژي څخه ګټه واخیستلای شي.

د هنري فعالیتونوزده کړه د یوې (مسئلې ) په توګه طراحي کېږي، چې د د وی رواني انګیزه د هنـري آثـارو د تولید لپاره فعاله کړي. هغوی فکرکولوته وهڅوي، ترڅو د مفکورې د ټاکلو،د وسایلو د انتخابولو او لارو لپاره تصمیم ونیسي، د دې تصمیمونوپه مرسته د ورځنیوستونزوپه وړاندې ځانونه تیاروي.

نوپه دې اساس دا لیدنې په څلورو برخو وېشل شوې دې: ښکلا پېژندنه، د هنرتاریخ، هنـري تولیـد او هنـري نقد باندې ولاړدی. څلوروارړه برخې بې په هنري فعالیتونوکې یوشان ارزښت لري او د هرې یوې برخې کارونه خپل خپل ځای لري.

د هنري فعالیتونوپه سرته رسولوکې د زده کوونکوهنري روزنه په دې څلوروبرخوکې تر سره کېږي.

**۶- ۲- اووم ټولګي کې د هنر دزده کړې عنوانونه**:

د اووم ټولګي د هنرد زده کړې عنوانونه د منځنۍ دورې (۷- ۹) ټولګیو پورې له مفرداتو سره سمون لري.

دالف په جدول کې د هنردزده کړې عنوانونه، ، پوهنیز مـهارتونه او پـه جـدول کـې د هنـرد عنوانونـو د تـدریس لارښود ترسترګو کېږي.

## - ۲- د اووم ټولګي د هنرد زده کړې عنوانونه

**الف – د زده کړې عنوانونه، د پراختیا او تسلسل جد ول مفهومونه، ښوونېزاو د هنر د لوست چهارتونه**

| د عنوانونوعمومي محورونه | د عنوانونوفرعي محورونه | مفهوم | پوهه | مهارت |
|---|---|---|---|---|
| انځور اوتصویر | رنګونه | - واقعي رنګونه<br>- اساسي رنګونه<br>- ثانوي رنګونه<br>- د رنګ درجې<br>- د خطونو شکلونه<br>- د خطواثر<br>- د خطوځرنګوالی<br>- په اسلامي ښکلاو کې خطونه<br>- د څارویو شکلونه<br>- د الوتونکو شکلونه<br>- دریایي شکلونه | له زده کوونکوڅخه غوښتنه کېږي چې د لاندني ټقطو د درک توان ولري.<br>د رنګونود دلالتونو پېژندنه.<br>• د طبیعت په طبیعي رنګو پوهېدنه<br>• د اصلي اوثانوي رنګو پېژندنه.<br>• له رنګي درجو سره آشنایي.<br>• د طبیعي شکلونو له خطونو سره بلدتیا.<br>• په خطونو پوهېدنه او تغییر.<br>• د اسلامي،مذهبي او مقدسو ځایونو په ښکلاوکې د خطونو درک کول.<br>• د څارویو، الوتونکو او بحري حیواناتو د سمولو او د رنګو له ټاکلو سره بلدتیا.<br>• د شکلونو په معنا پوهېدنه. | • په مختلفو رنګو انځور ګري، لکه: ونه، غر او نور.<br>• د اساسي رنګونو جلا کول له ثانوي رنګونوڅخه.<br>• د دو اساسي رنګو له ترکیب څخه د یوه ثانوي رنګ پرلاس راوړل.<br>• د تیاره او روښانه رنګو په واسطه د یو مناسب ځای رنګول.<br>• په ودانیو، ونو او د کارونې ور شیانو او طبیعي شکلونو کې د خطونو کتنې.<br>• په بېلا بېلو شکلو کې د خطونو انځورول، لکه: کارتوني شکلونه او نور.<br>• د خطوپه واسطه د اسلامي او مقدس ځایونو ښکلي کول او د هندسي ساده شکلونو انځورول. |
| د لاسي کاروطرحه | | - یووالی<br>- توازن<br>- انسجام<br>- ټاپه یا کولاج<br>- کاغذي جوړېد نې<br>- ګل ګند یا سکویي | • په هنري کارو کې د طرحه کولو په اصولو پوهېدنه (توازن او انسجام) په پام کې ونیول شي.<br>• د طراحي په تخنیکونو پوهېدنه.<br>• د ستنې په واسطه له ګنډلو سره بلدتیا، د سیم کارولو په تخنیک پوهېدنه. | • د تولید لپاره د طراحي د اصولو کارول. طرحې او تخنیکونه، لکه: په ابتکاري طرحو کې کاغذي کارونه او ټاپه کول، لکه: د لېږو، پیاز او د ونو د پاڼو ټاپه کول.<br>• د کولاج د کارونو لپاره د خامو طبیعي مواد و کارول.<br>• د ګل ګند یا سکویي د تولید لپاره د ګل ګند له وسیلو څخه ګټه اخیستل. |

| مهارت | پوهه | مفهومونه | د فرعي عنوانومحور | د عمومي عنوانومحور |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| • د ښېلا ښېلو هيکلونو د شکلونو جوړونه.<br>• له سيم څخه د هيکلونو د مختلفوشکلونو جوړول،لکه: کب او الوتونکي،<br>• د خپلو هنري کارو قدرکول،<br>• پخپلو هنري کارو وياړ. | | • د سيمي شکلونو جوړول. | | د هنر تاريخ |
| • د بين النهرين او له فرعوني آثارو څخه د يوه اثر انځورول چې له هغې عصر سره ورته والی ولري.<br>• د بين النهرين او فرعوني هنرونو د ځانگړتياوو په گوته کول.<br>• د بين النهرين د هنرونو د ښکلاوو او ارزښتونو قدر کول. | • د بين النهرين او فرعوني په زړو هنرونو پوهېدنه.<br>• د بين النهرين او له فرعوني تمدن سره آشنايي او د ځانگړتياوو،لکه: هيکلونو جوړونه، تصوير.بنايي او له سفالي لوښوجوړولو سره بلدېدل.<br>• د بين النهرين او فرعوني هنرونو د ښکلاوو په ارزښت پوهېدنه. | • د بين النهرين په تمدن کې د فرعوني هنرونو ځانگړتياوې. | | |

**۷- ۲- د هنر د زده کړې کړنلاره:**

د هنر زده کړه د لاندې فعالیتونوپه کارولو سره سرته رسولی شو.

**الف: د هنرمستقیم تدریس:**

د دې لارو یا طریقو په واسطه ښوونکی کولی شي چې مفهمونه ( اصطلاحات، معلومات، اوپه کتاب کې شامل متنونه تدریس کړي ).

دا لاره یا طریقه د لنډوخبرو او یا د یوې پرله پسې ننداړې د ځینو عملي مهارتونو په ترڅ کې سرته رسیږي. ښوونکی کولی شي چې سوالونه وکړي او له زده کوونکوسره پرې خبرې وکړي.

**ب – زده کړه په ډلییزکارکې:** ښوونکی کولی شي چې د دې لارو په واسطه د هنرپه زده کړه او په ډلییزه توګه هنري فعالیتونه یو له بل سره د مرستې او متقابل باور په لرلو سره زده کړې وکړي اوپه یوه درسي ساعت کې باید یوشمېرمهارتونه سر ته ورسوي.

ښوونکی کولی شي چې د زده کوونکو په ډلوباندې ښه هنري کارونه ترسره کړي.

**ج – د خبرواترو په واسطه د ستونزوحل:**

د خبرو اترو کړنلاره یا طریقه د هنري فعالیتونو د سرته رسولولپاره د ډېرو مناسبوستراتېژیوله ډلې څخه حسابېږي. په دې کې طبیعي شکلونه، رنګونه، خطونه، مساحتونه، سیوري اوروښنایي څرګندېږي. په هغې کې د هنري کارونوتجربه کول او د ستونزو حل لارې، همدارنګه د موضوعګانود ټاکلو، فکرکولو لارې موجودې دي.

**د –پروژې فعالیتونه ( د کار واحد ):**

ښوونکی د دې طریقې له لارې د هنري لویوکارود تولید په باب په مکتب او ټولنه کې خد مت کوي، د مثال په توګه د لویو پروژو د سرته رسولو، لکه: په لویود یوالونوانځورګري، هیکلونه، ساختماني کارونه او داسې نور. همدارنګه د دې طریقې په واسطه کیدلی شي چې د هنري تولیدي کارو علمي څېړنې سرته و رسوي. دا لاره د زده کوونکوازادي اواستقلال ته پیاوړتیا وربخښي او دوی ته په ژوندانه کې د بېلابېلو مهارتونود لاس ته راوړلومسؤولیتونه ورپه ګوته کوي.

**هه – د انتقادي تفکر لاره:**

دا لاره زده کوونکوته د ډېروښومهارتونود کارولو، لکه: تحلیل، ترکیب، تصحیح، بیاکتنه او د ستونزو د حل کولوکې ژور فکراو همدارنګه د سوالونواوفرضیو د حل زمینه برابروي، د طرحوتولید زده کوونکوته وخت ورکوي چې فکري مهارتونه د طبقه بند ي، تصنیف، قیاس، اړیکې، وړاند وینې اوتجربه کولوته پراختیا ورکړي. په دې لاره کې د ښوونکي رول د همدې مهارتونو په پوښتلو د زده کوونکو د باورتیټګښت رامنځ ته کوي.

**و – د پوښتنواوځوابونولارې یا طریقې:** په دې لاره کې ښوونکی د سوالونوپه واسطه د موضوع ګانولاربښوونه کولی شي. دا پوښتنې اوځوابونه زده کوونکي د هنري فعالیتونو سرته رسولوته تیاروي.

**ز – د نندارو طريقه**

په دې لاره ښوونکی د يوه شي په ورښود لوياپوطبيعي شي چې د انسان په لاس جوړشوی وي ياپوانځور ياپوه وسيله زده کوونکوته مفهومونه ورکوي. د وی ته معلومات ورکوي، ترڅوهنري فعاليتوته تيارشي.

**ح – توضيحي لاره:**

په دې لاره کې ښوونکی د يوه مفهوم په اړه، يوه وسيله اويا د يوه فعاليت سرته رسول زده کوونکوته توضيح کوي چې دوی د مفهوم ياوسيلې د کارولو له فعاليت سره بلدشي.

**۸- ۲- د هنري پروګرام د سرته رسولووسيلې:**

**الف – له طبيعت سره اړيکې:**

هر هغه څه چې په طبيعت کې وجود لري، لکه: ځمکه، اسمان، بوټي، الوتونکي، تيږې، پاڼې، ميوې او... يا د ليد لوااولهام اخيستلولپاره له شکلونو، رنګونو او... څخه ګټه اخيستل کېږي. ځينې له دې توکوڅخه، لکه: تيږې او وچې پاڼې په هنري فعاليتونوکې په کاروړل کېږي

**ب – په رسم اوتصويرکې:**

بېلابېل کاغذونه اوډبل ( مقوا) کاغذونه د کارکولولپاره، ترس ( نازک) کاغذ د کاپي کولولپاره، د رنګه توکو مختلف قسمونه، لکه: رنګه پنسل، آبي رنګ، پلاستيکي رنګونه، پوډري رنګونه لکه زرد چوبه رنګه معدني پوډر لاجورد اوکومکي وسيلې، لکه: مويک، پلېټ او د اوبو لوښی، طبيعي اومصنوعي مواد د ټاپه کولواوکمپيوټرلپاره ترې ګټه اخيستل کېږي.

**ج – په لاسي کاراوطراحي کې:**

په بېلابېل پنډوالي کاغذونه اومقوا، باطله کاغذونه، خط کش، بياتي، مايع سلېښت، د رس ختمه، سکاشټيپ، د آشګز لرګی، پلاستيک، د کارجامې، د تيرې نوکې لرونکي شيان، ډيزاين جوړونکي شيان، رنګه مری، وچې پاڼې اوښاخونه، مختلفې تيرې، باطله قطي، مويک اورنګه مواد د لاسي کارو د رنګولولپاره ورنس د رنګونود ثابت ساتلولپاره ترې ګټه اخيستل کېږي.

**د – د افغانستان د هنرونواو د نړۍ د هنر له تاريخ سره بلدتيا:**

د موزيمونوليدنه، ملي ګالري، هنري ننداري، هنري توليد اوهنري ښوونځي اوموسسې، د هنر تاريخ د کتابونو لوستل، د تمدن تاريخ او فرهنګ د دې درسولپاره ګټوردي.

**۹- ۲- د ارزونو کړنلاره:**

د هنرکتاب له دريو برخوڅخه تشکيل شوی دی چې يوې د نقاشۍ برخه، بله يې لاسي کارونه او دريمه برخه يې د هنر تاريخ دی. ښوونکی کولی شي چې د هنرپه اړه له څلورنيمو مياشتو تدريس وروسته خپلې ارزونې وکړي،د لومړنيو څلورنيمو مياشتو وروسته ۴۰ نمرې او اخيري څلورنيمومياشتووروسته ۲۰ نمرې په دې کتاب کې په پام کې ونيسي، د زده کوونکوله سويې سره سمې نمرې ورکړي، د زده کوونکو د فعاليتونو د ارزونې لپاره کم ترکم له پنځو لارو څخه ګټه واخلي.

**الف- د عمل کولوارزونې: د زده کوونکوارزونه دې د کارکولو د فعالیتوپه پام کې نیولو سره سرته ورسېږي.**

- عملي مهارتونه چې زده کوونکي يې د ټولګي د ننه او د باندې سرته رسوي.
- د هنري کارونو وړاندې کول او د هغې تحلیل اوپرې خبرې اترې کول.
- د هنري ننداراتون جوړېد ل اوپه هغه کې د زده کوونکوونډه اخیستل.
- د درس په اوږد وکې د زده کوونکو ترمنځ بحث کول.

**ب – په کاغذ او قلم ارزونه:**

په دې ارزونه کې ښوونکی کولی شي چې زده کوونکي وارزوي او د دوی زده کـړه قیاس کـړي، همدارنګـه پـه مختلفو تعلیمي برخوکې د دوی د مهارتونو معلومات د لاندې ټکوپه وجه وپیژندلی شي.

- په تمرینونوکې لیکل شوې نظریې،

**ج – د کتلوپه طریقه ارزونه:**

**ښوونکی دې په دې کړنلاره کې دغه لاندې ټکي وګوري:**

- د هنري مهارتونو د سرته رسولوپه حال کې،
- د مهارتونود سرته رسولوپوهېدنه،
- له وسیلواوخاموموادو سره تعامل،
- له نوروسره تعامل،
- په ټولګي کې د زده کوونکود تګ لارې کتنه،
- د زده کوونکود تفکرطریقه.

**د - د ارتباطي مهارتونوپه برخه کې اروزنه :**

**د زده کوونکوارزونه د لاندې ټکوپه اساس.**

- فکر،
- علاقه،
- د تفکر لاره او د ستونزوحل،
- د خبرواترو پراختیا او څرنګوالی،

**هه – د ځاني بیاکتنې ارزونه:**

دا ارزونه په ځانګړي ډول د زده کوونکولپاره ده چې د کارپه ښه کولوکې له دوی سره مرسته کوي.

- د زده کړې په اړه د ځان ارزونه،

- د وخت په اوږد وکې د خپل ځان له پرمختګ سره بلدتیا،

- په زده کړه کې فعاله ونډه،

- د خپل ځان په قوي اوکمزوروټکوپوهېدنه،

- د مسئوولیت زغمل،

- د برياووپه سرته رسولوکې د زده کوونکواحساس،

**۱۰- ۲- د ارزونې وسيلې**:

ښوونکی کولی شي چې لاندې وسیلې د ارزونې لپاره وکاروي،

**الف – د څارنې جدولونه**

دا وسیله د معیارونو د ټاکلولپاره چې ځواب یې (بلې یانه ) وي مناسب دی.

**ب – د ستاینې درجې**.

داوسیلې د معیارونولپاره چې د اعلي، عالي،ښه، منځني اوضعیف یا( ۱- ۲- ۳- ۴- ۵ ) مناسبې دي.

**د ستاینې د درجونمونه په لاندې جدول کې کتلای شئ، ښوونکی کولی شي چې دې ته ورته نمونې جوړې کړي**.

| شمېر | د کارکولونښانې (معیارونه) | د کارکولوسطح | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | روښانه او تیاره رنګونه. | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ |
| ۲ | په هنري کارکې د روښنايي کارول. | | | | | |
| ۳ | د شکل نظافت. | | | | | |
| ۴ | د وسیلوپاکوالی. | | | | | |
| ۵ | په ټاکلي وخت کې د کارسرته رسول. | | | | | |
| ۶ | په هنري کارکې دقت کول. | | | | | |
| ۷ | د کار د تکمیلېدوتحمل. | | | | | |

**ج – د لفظي ستاینې درجې.**

داوسیلې د مهارتونو او د تدریس د زده کړې لپاره مناسبې دي.

د – په زده کړه کې د صفتونولوری.

داوسیلې د زده کوونکولپاره ځانګړي سجل دی چې په هغه کې د خپلې زده کړې څرنګوالی لیکي.

**هه –د استاني سجل (د ښوونکي سجل )**

ښوونکی په هغه کې د هنر د زده کړې پراختیا، لاس ته راوړنې اومهارتونه لیکي.

لاندې مثالونه د ارزونې د ستراتېژۍ او د هغې د وسیلو د کارولولپاره دي:

- د رنګونو په نرم والي او تراکم کې د زده کوونکومهارت
- کړنلاره : په عمل ولاړه ارزونه
- وسیلې : د ستاینې درجې

**د ویم څپرکی:**

**د زده کړې د عنوانونو تدریس:**

د دې کتاب په لومړي څپرکي کې د هنر مضمون مفرداتو او کلیاتوسره بلد شوي یاست. په دې څپرکي کې به د هنرد کتاب له څلوروبرخوتجسمي هنرونه،نقاشي، لاسي کارونه او د هنرتاریخ په لومړي جدول کې وګورئ. د زده کوونکوروحیه ددې، تقسیم بندي په وجه پلټونکو، بېلابېلوموضوعګانوته پاملرنه، هغه شیان چې په چاپیریال کې موجود دي کره کتنه، د هنر تاریخ، فرهنګ او ملي هنرونوته په خپل ځان کې پراختیاورکړي او د وی یوه اندازه فرهنګي اوهنري اړتیاوې به پوره شي.

د تدریس کلنۍ پلان چې د هنر مضمون د زده کړې لپاره، د سړواوګرمولایتونووختونه راښيي، په ۲ او۳ جدولونوکې تیارشوي دي. له هغې وروسته په ترتیب سره تجسمي هنرونه، انځورګري، لاسي کارونه او د هنر له تاریخ سره بلدتیا به مطالعه کړئ. په هره برخه کې یې ښوونکي ته لارښوونه او د هر درس په برخه کې توضیحات لیکل شوي دي. په وروستۍ برخه کې د ورځیني پلان څونمونې ترسترګو کېږي چې د ښه تدریس

په اړه ستاسې سره مرسته کوي او د کتاب په وروستۍ برخه کې د موزیمونو لړ لیک او د سرچینو لړلیک ستاسې د زیاتو معلوماتو لپاره وړاندې شوي دي.

**۱- کلنی پلان:**

ښوونیز کال ۹ میاشتې دی. په سړوولایتونوکې ښوونیز کال په پسرلي کې د کب په ۱۵ پیل کېږي. زده کوونکي په پسرلي، اوړي او مني کې ښوونځي ته ځي. هرفصل درې میاشتې او هره میاشت څلور اونۍ ده. د سرطان د میاشتې دوې وروستې اونۍ د آزموینې لپاره ټاکل شوي دي. د اسد میاشتې دوې وروستۍ اونۍ زده کوونکي رخصت دي. د قوس میاشتې له اولې نېټې څخه ترپنځلسمې پورې، د کلنۍ ازموینې په پای کې د ژمي رخصتي پیل کېږي او ښوونیز کال پای ته رسېږي اویو ښوونیز کال ۲۸ اونۍ دی.

په ګرمو ولایتونو کې تعلیمي کال د مني د فصل له لومړۍ ورځې څخه پیل کېږي. څلورنیم میاشتېنۍ آموزینه یې د جدي د میاشتې په لومړۍ نېټه پیل اوترپنځلسمې ورځې پورې ادامه پیداکوي او د همدې میاشتې اخیرې پنځلس ورځې رخصتي وي.

د جوزا د میاشتې له لومړۍ نیټې څخه کلنۍ آزموینه پیل اوترپنځلسو ورځوپورې د وام کوي، وروسته عمومي رخصتي پیل کېږي. په دې ولایتونوکې زده کوونکي ۲۸ اونۍ درس لولي.

د اووم ټولګي په درسي پروګرام کې په اونۍ کې یوساعت د هنر مضمون لپاره ځانګړی شوی دی. له دې امله د هنر۲۲ درسونه د کلني پلان په ۲ جد ول کې په ترتیب سره د سړوسیموزده کوونکوته وړاندې شوي دي. درس په سوالونو پیل کېږي. د دې لپاره چې د زده کوونکوانګېزې راوپاروي، د دوی ذهن روښانه او د درس موضوع ته یې پام راګرځوي. د درس په اخیرکې تمرینونه، خبرې اترې او د تجربو د ترلاسه کولووړاندیزونه شوي دي، چې لوست ته ټینګښت او د موضوع ګانود محکمتیا سبب ګرځي. دا لاره د تدریس په وخت کې د ذهني فضا د فعالولوسبب کېږي او د زده کوونکوټول خواس لوست ته راګرځوي.

## ب – د اووم ټولګي د عنوانود تدریس لارښود جدول

| بخش | د لوست شمېر | د لوست عنوان | عملي | نظري | د ساعتونوتعداد |
|---|---|---|---|---|---|
| تجسمي هنرونه | ۱ | خط | × | × | ۱ |
| | ۴ | له هنري وسیلو سره بلدتیا | × | × | ۱ |
| | ۵ | شکل ( سطحه ا حجم) | × | × | ۱ |
| | 9 | رنګونه | × | × | ۱ |
| انځور ګري | 16 | او بدني یا جوړښتونه | × | | ۱ |
| | ۲ | په خطوانځور ګري | × | | ۱ |
| | ۲ | په ګوتو ټاپه کول | × | | ۲ |
| | ۱۰ | د میوې د لوښي انځوروِل | × | | ۲ |
| | ۱۳ | د خپلې خوښې له فصل څخه انځورګري | × | × | ۲ |
| لاسي کارونه | ۱۷ | د خټو د حجمونو رنګه کول | × | × | ۱ |
| | ۷ | د سیمي کرې جوړېدل | × | × | ۲ |
| | ۱۲ | د رس یا د (مکن) له ختې څخه د ساده حجمونو جوړېدل | × | × | ۲ |
| | ۱۴ | د ګوتو د فشار په واسطه له ختو څخه د حجمونو جوړېدل | × | × | ۲ |
| | ۱۹ | د بېلا بېلو سیمي حجمونو جوړېدل | | × | |
| د هنر له تاریخ سره بلدتیا | ۲۱ | په طبیعي موادو د لاسي کار جوړېدل | | × | ۲ |
| | ۳ | (له اسلام څخه مخکې) د افغانستان د هنر تاریخ | | × | ۱ |
| | ۸ | د ډبرو د د ورو هنر | | × | ۱ |
| | ۱۱ | د بین النهرین، ایران او مصر هنرونه | | × | ۱ |
| | ۱۵ | د لرغوني هند ، چین او جاپان هنرونه | | × | ۱ |
| | ۱۸ | د لرغوني یونان او لرغوني روم هنرونه | | × | ۱ |
| | ۲۰ | د مسحیت هنرونه | | × | ۱ |
| | | له افغاني هنرمندانو سره آشنایي | | | ۱ |
| | | | | جمع | ۲۸ ساعته |

## جدول: د سړوسیمو د اووم ټولګي د هنر مضمون کلنی پلان

| فصل | میاشتې | لومړۍ اوونۍ | د ویمه اوونۍ | دریمه اوونۍ | څلورمه اوونۍ |
|---|---|---|---|---|---|
| پسرلی | وری | خط | په خطونوانځور ګري | د افغانستان د هنر له تاریخ سره بلدتیا ( له اسلام څخه مخکې) | د افغانستان د هنر له تاریخ سره بلدتیا ( له اسلام څخه مخکې) |
| | غویی | د هنري وسیلو پېژند نه | شکل (سطحه او حجم) | په ګوتو ټاپه کول | د سیمي کرې جوړول |
| | غبرګولی | له منظرې انځورګري | رنګونه | رنګونه | د میوې د لوښي انځور ګري |
| اوړی | چنګاښ | د میوې د لوښي انځور ګري | د بین النهرین،ایران او مصر هنرونه | آزموینې | آزموینې |
| | زمری | رخصتي | رخصتي | له رس ختې څخه د ساده حجمونو جوړېدل | له رس ختې څخه د ساده حجمونو جوړېدل |
| | وږی | د خپلې خوښې له فصل څخه انځور ګري | د ګوتو د فشار په واسطه له خټو څخه د حجمونو جوړېدل | د ګوتو د فشار په واسطه له خټو څخه د حجمونو جوړېدل | د هند، چین او جاپان هنرونه |
| مني | تله | او بدنې یا جوړښتونه | د خټینو حجمو رنګول | د لرغوني یونان او لرغوني روم هنرونه | د بېلا بېلو سیمي حجمونو جوړېدل |
| | لړم | د بېلا بېلو سیمي حجمونو جوړېدل | د مسحیت هنر | په طبیعي مواد و د لاسي کار جوړېدل | له افغاني هنرمندانوسره آشنا کېدل |
| | لیندۍ | آزموینې | آزموینې | رخصتي | رخصتي |

## ۳ جدول: د گرموسیمو اووم ټولگي د هنر مضمون کلنی پلان

| فصل | میاشتې | لومړۍ اوونۍ | دویمه اوونۍ | دریمه اوونۍ | څلورمه اوونۍ |
|---|---|---|---|---|---|
| مني | تله | خط | په خطونوانځور گري | د افغانستان د هنر له تاریخ سره بلدتیا ( له اسلام څخه مخکې) | د افغانستان د هنر له تاریخ سره بلدتیا ( له اسلام څخه مخکې) |
| | لړم<br>لیندۍ | د هنري وسیلو پېژندنه<br>له منظرې انځور گري | شکل (سطحه او حجم)<br>رنگونه | په گوتو ټاپه کول<br>رنگونه | د سیمي کري جوړول<br>د بین النهرین، ایران او مصر هنرونه |
| ژمی | مرغومې | آزموینې | آزموینې | رخصتي | رخصتي |
| | سلواغه | د میوې د لوښي انځور گري | د میوې د لوښي انځور گري | له رس ختې څخه د ساده حجمونو جوړېدل | له رس ختې څخه د ساده حجمونو جوړېدل |
| | کب | د خپلې خوښې له فصل څخه انځور گري | د گوتو د فشار په واسطه له ختو څخه د حجمونو جوړېدل | د گوتو د فشار په واسطه له ختو څخه د حجمونو جوړېدل | د هند ، چین او جاپان هنرونه |
| پسرلی | وری | او بد نې یا جوړښتونه | د ختینو حجمو رنگول | د لرغوني یونان او لرغوني روم هنرونه | د ببلا ببلو سیمي حجمونو جوړېدل |
| | غوایي | د ببلا ببلو سیمي حجمونو جوړېدل | د مسحیت هنر | په طبیعي مواد و د لاسي کار جوړېدل | له افغاني هنرمندانوسره آشنا کېدل |
| | غبرگولی | آزموینې | آزموینې | رخصتي | رخصتي |

## ۱- تجسمي هنرونه: د ښوونکي لارښود

۱- ۲- په تجسمي هنرونوکې دا هنرونه شامل دئ، لکه: انځورګري، هيکل جوړونه او معماري چې لـه صـوتي او يـا له نندااريزو (تمثيل) هنرونو څخه جلاکېږي.تجسمي هنرونه د بصري له پلوه د زيات ارزښت وړدي. په هيکل جوړونه او معمارۍ کې سربېره پر بصري جنبه حجمونه اوفضاهم مطرح کېږي. دا آثار د هنرمند ذهنيت تفکر ته اړ باسـي او دا پاتې کيدونکي اثردي. د تجسمي هنرونو الفبا مختلفو آثارو ته بڼه ورکوي، چې هغـه د طبيعـت اجـزاوې دي، پـه طبيعت کې شکلونه، رنګونه، بېلابېلې او بدنې شاملې دي. انسان د طبيعت له اجـزاوو څخـه پـه الـهام اخيـستلوپه مصنوعي شکلونو، رنګونو او اوبدنو لاس پوري کوي، لکه: څنګه چې په ژبو کې د الفبـاتورو لـه يوځـای کېدوڅخـه کلمې جوړېږي او د هغې په واسطه کولی شو، مختلف مفهمونه بيان کړو، په هنرکې له نقطې، خـط، رنـګ، شـکل اوبدنوڅخه کيدلی شئ چې ښکلي آثار منځ ته راشي.

د طبيعت دېرمهم عنصر د تجسمي هنرونوالفبا دي. پـه تجـسمي هنرونـوکې د الفباترکيـب د بېلابېلوآثـارود توليـد سبب ګرځي، لکه: څرنګه چې هره ژبه ځانګړي ګرامري اصـول لـري. د ليـدنې (بـصری ) ژبـه هـم قاعـده لـري. دا قاعدې د الفبا يا بصري عنصروترمنځ ځانګړي کوي، لکه: په شکلونواواندازوتناسبونه، د رنګـو او ريـتم تـرمنځ هـم غږي. د عنصرونو تر څنګ تحرک رامنځ ته کوي.

**نقطه** – د طبيعت لومړنی او دېر ساده جز نقطه ده. د کاغذپرمخ د پنسل د نوکې کېښودل، د نقطې دېر ساده شـکل د ی. په طبيعت کې دېرې نقطې وجود لري. ستوري اوسپوږمی له لرې څخه د نقطې په شکل ليد ل کېږي.

ښوونکی دې زده کوونکي د خپل چاپيريال نقطوليد لوته وهڅوي.

**خط** – د څونقطو له يوځای کېدوڅخه خط منځ ته راځي، ياد نقطوحرکت خط را مـنځ تـه کـوي. پـه طبيعـت کـې خطونه په درې دوله منحني، منکسر او مستقيم دولو وېشل شوي دي. خطونه په طبيعت کې په مختلفوشـکلولېدل کېږي او د هرشکل په څنډوکې يـوخط ترسـترګوکېږي چـې د هغـې حـد ود ځـانګړي شـکل د فـضاله اطرافوڅخـه جلاکوي.

سره ببره پردې د خطونو له څنګ پر څنګ کارولوڅخه بېلابېل شکلونه رامنځ ته کېږي چې ځينې يې ريتم لرونکـي دي، لکه: د ګوره خره په بدن باندې خطونه چې هم ضخيم او هم نازک دي اوپه يوه ټاکلې فاصله د يو بل ترڅنګ پراته دي.

**ريتم** – په شکلونو، خطونو، رنګونو، او او بدنوکې سم او منظم حرکت ته ريتم وايي.

**شکل**– د منځنی د ورې د هنر پـه مـضمون کـې د شکلوسـطحې اوحجمونـه پـه د ووبرخوهنـد سـي اوغيرهندسـي وېـشل شـوي دي. دېـره پېژنـدل شـوې هندسـې سـطحه دايـره ده، لکـه د مياشـتې څوارلـسمه شـپه، د لمرسـترګه، د اوسپنې پيسې، بشقاب ګردی ميز او د جومات د ګنبدې فضا، په طبيعت کې دېر آشـناحجم کـره ده، لکـه: ځينـې ميوې، ستوري اونور. غيرهندسي شکلونه چې په مختلفوشکلوپه طبيعت کې وجود لري يا طبيعت ته يې ځانګړې

ښکلاورکړې ده، لکه: د ونو د پاڼوشکلونه، د ګلانوپاڼې، د کب اوالوتونکوښکې اوبدن، ونې، غرونه، تیږې او داسې نور ډېر بېلابېل غیرهندسي حجمونه شتون لري.

**رنګ**– د لیدلو یوډېرارزښتمن  عنصر دی چې په عمومي ډول یې د شیانو مخونه پوښلي دي، په طبیعت کې ډېرخالص طبیعي رنګونه شنې زرغونې (د بوډۍ ټال) دي، اماد رنګونوبېلابېل ډولونه په آسمان،دریابونو، غرونو، رنګه خاورو، بېلا بېلو ګلانو، پاڼو، مېوو، د پتنګ وزرونو، د الوتونکوبدن او په کبانوکې ترستر ګوکېږي.

ځیني د دې رنګو، لکه: شنه زرغونه د نورپه قسم اوځینې نوربې د رنګه مواد وپه شان دي. په طبیعت کې رنګه مواد په  درو ډلو، لکه: د بوټورنګونه، حیواني رنګونه اوپه معدني رنګونووېشل کېږي. د بوټو رنګونه، لکه: کوردکمن، زعفران، د چای شمه، د اناروپوټکی، د چارمغزوپوټکی، د پیازوپوټکی چې له جوش کولووروسته ښکلي رنګونه جوړوي. معدني رنګونه، لکه: د لاجورد ورنګ، د سکروپوډر، د سرواوسپینوزرورنګونه چې له ځانګړوتېلوسره یوځای کېږي او وروسته له هغه د کارولو وړتیا پیداکوي. دریمه ډله رنګونه چې حیواني اساس لري، لکه: سوررنګ چې له یوې حشرې چې په  اوربلکي یا په قرمزدانه مشهوره ده، جوړېږي، یایوډول بنفش رنګ چې د دریایي صدفو له جوشیدو  وروسته په لاس راځي.

سربېره پردې انسانانو د کیماوي ترکیبونوپه مرسته ځینې رنګونه جوړکړي دي، مصنوعي رنګونه مختلف ډولونه لري چې د بېلابېلوشیانوپه رنګه کولوکې ترې ګټه اخیستل کېږي، لکه: رنګمالي، د نخي ټوکرورنګول، د پلاستیکي لوښورنګول، د موټرورنګونه او د  انځورګرئ رنګونه، لکه: ابي رنګونه.

د رنګونوبېلابېل ډولونه له اصلي رنګوڅخه پر لاس راځي. زېړ، سور اواسماني شین ( ابي) اصلي رنګونه دي چې له نوروړنګوڅخه  نه شي جوړېدلی اوهمیشه باید  موجود وي، له ترکیب څخه یې نوررنګونه جوړیږي.

(له دوو اصلي) رنګونو له ترکیب څخه ثانوي رنګونه جوړېږي.

زیړرنګ + سور رنګ = نارنجي رنګ

زېړ+ اسماني شین = شفتلي شین

سور+ اسماني شین = بانجاني رنګ

که چېرې هراصلي رنګ له یوه ثانوي رنګ سره ترکیب کړودریمه درجه رنګ لاس ته راځي.

زېړ + نارنجي رنګ = زېړنارنجي

زېړ + شفتلي شین = شین بخن زېړ

سور + نارنجي = سورنارنجي

سور+ بنفش = سورخي بخن بنفش

آسماني شین + شفتلي شین = شین ابي

اسماني شین + بانجاني رنګ = ابي لرونکی بنفش

د درو اصلي او درو ثانوي رنګو له ترکیب څخه، چې مجموعه یې ۱۲ رنګه دي، د توراوسپین رنګ له ترکیب څخه مختلف رنګونه پر لاس راځي. توراوسپین رنګ ارزښت نه لري، هغه خنثی رنګونه بولي، ولې له نورورنګوسره د ترکیب په صورت کې رنګونه روښانه اوتیاره کوي بعضي نوي رنګونه جوړوي. که له یوه رنګ سره سپین رنګ ګډ کړو، نو ډېرروښانه رنګ جوړېدلی شي. همدارنګه که له یوه رنګ سره تور رنګ ترکیب کړو نو و به ګورو چې رنګ تیاره شوی دی، که تور او سپین رنګونه سره ترکیب کړو، نو روښانه ایره رنګه رنګ جوړوي. که د توررنګ اندازه پرې زیاته شي، تیاره رنګ جوړوي، همېشه له تیاره رنګونو، لکه: شفتلي شین اویابنفش سره روښانه رنګونه، لکه: ژېړ یا نارنجي رنګ ورزیات شي، ځکه چې د شین او بانجاني رنګونو رنګي قدرت زیا ت دی. ډېرکم آبي رنګ ژیړرنګ په شفتلي شین بدلوي.

د آبي او روغني رنګونو ترکیب اسان دی، ځکه چې داحل کېد ونکي اورقیق مواد لري. آبي رنګونه له اوبوسره رقیق کېږي، هرڅومره چې زیاتې اوبه ورسره ترکیب کړو، رنګ روښانه اورقیق کېږي. روغني رنګونه غلیظ دي . د تېلو له ترکیب سره رقیق کېږي، د روښانه کولولپاره یې باید له سپین رنګ څخه ګټه واخیستل شي. د رنګونو د کارولو لپاره له مویک څخه استفاده کېږي چې د هغې په واسطه رنګ له پلېټ څخه اخیستل کېږي، په کاغذ او یا رخت باندې کارول کېږي. کله چې د یوه انځورلپاره له مختلفورنګواستفاده کېږي، باید د هررنګ له استفادې وروسته مویک ښه پاک پرېمینځل شي، ترڅورنګ د مویک په وېښتانوکې پاتې نشي او له بل رنګ سره مخلوط نه شي. په مویک کې د رنګ پاتې کېدل د مویک د وېښتانود لوېدلوسبب ګرځي.

**د رنګونوترکیب**: د خپلې خوښې رنګونوجوړول، له آبي رنګونوڅخه ګټه اخیستنه، زیات تمرین ته اړتیا لري. په نقاشۍ کې د رنګونومناسب غلظت لاس ته راوړل او د سطحو رنګه کول زیات ارزښت لري. رنګ باید د ومره ټینګ یاغلیظ نه وي، چې له مویک څخه جلانه شي او نه د ومره اوبلن وي چې څاڅکي ترې ولوېږي. که آبي رنګ په لاس کې نه وي، کولی شئ له رنګه پوډروڅخه، لکه: لاجورد اویاد سکروله پوډرو څخه ګټه واخلئ. که سلښت او یا تیل له پورته پوډرو سره یوځای کړئ، ترڅوله دې مواد وڅخه رنګونه تیارشي او په انځورګرۍ کې وکارول شي. دا رنګونه ډېرژرخرابېږي او زیاته ګټه ترې نه اخیستل کېږي، له دې امله د اړتیا په اندازه باید جوړشي. که چېرې معدني پوډر په واک کې نه لرئ، کولی شئ، له پلاستیکي رنګونوڅخه چې د رنګ مالۍ لپاره یې کاروي، په رسامۍ کې ګټه واخلئ. له دې رنګ څخه یوه قاشقه په پلېټ کې واچوئ او له اوبو سره یې یوځای کړئ ، نقاشي پرې وکړئ. آبي رنګونه، پلاستیکي رنګونه اوپوډري رنګونه د ټاپه کولو او له لاسي کارو، لکه: ختین حجمونه او هغه حجمونه چې له غونج شویوکاغذو څخه جوړېږي، د رنګه کولولپاره مناسب دي. له نقاشۍ مخکې باید هغه طرحه چې غواړي رنګه کړي، لومړی یې اندازه په پنسل وکاږئ اوپنسلي خطونه ځکه چې که د رنګ د لاندې ولیدل شي، د انځورښکلاله منځه وړي.

په نقاشۍ کې رنګونه په دوو ډولوکارول کېږي، طبیعي رنګونه ( واقعي ) اوذهني رنګونه، د نوي ځوانانو نقاشۍ په بېلابېلوموضوع ګانو کې ذهني رنګونه کارول کېږي.هرڅومره چې د ځوانانوسن یا عمر لوړېږي، په هماغه اندازه

دوی واقعي رنګونو سره علاقمندي پيداکوي. د هنر ښوونکي دې د زده کوونکوپاملرنه مختلفوواقعي رنګوته واړوي دوی دې د ذهني رنګودکارولو په وخت کې آزاد  پرېږدي، د مثال په توګه کوم رنګونه لري، لـه زده کوونکـو دې و پوښتل شي، چې د ونو د پاڼو په هکله معلومات ورکړي او بيا يې دوی ته شرحه کړئ، چې په مني کې د ونوپاڼې په ژېړ، نارنجي، سور نارنجي اوقهويي رنګونوليدل کېږي، دوی دې  د طبيعت د رنګونو د څرنګـوالي پـه اړه وپوهـوي اوهم دې له دوی څخه  وغواړي، چې په خپلونقاشيوکې له غير واقعي رنګونو څخه هـم ګټـه واخلـي. خپـل ذهنـي انځورونه په ذهني ډول رنګ کړي اوپه دې وسيله د د وی خلاقيت وروزي. په مختلفولوستونوکې که نقاشـي ذهنـي او ياد  اصل له مخې وي، د وی له دې ذهني رنګونوڅخه ګټې اخيستنې  ته چې د د وی ځانګړی احساس بيـانوي آزاد  پرېږدي.

**اوبدنې يا جوړښتونه**: بېلا بيلې پديدې سربېره پررنګ اوبدنې هم لري. په مناسبه روښنايي يا نوروکې د بېلابېلـو رنګونوتوپير پر بصري حس  درک کولی شو او د هر رنګ ليدل په موږ کې ځـانګړی احـساس راپـاروي.  اوبدنـه يـا بافت پيژندنه سربېره د ليدلو بر حس د لمس کولو حس ته هم اړتيالرو. موږ اوتاسې د ماشومتوب له د ورځ څخـه د مختلفوپديد لمس کول، لکه: زيږه، نرم، هواراولطيف تجربه کړيدي او د هغو ځانګړتياوې موخپـل خيـال تـه سـپارلي دي. له دې  امله کولی شوچې اوبدنې وپېژنوچې کومې هوارې او کومې زيږې دي< ځکه نـو زمـوږد ليـدنې حـس لـه موږ سره مرسته کوي، ترڅود اوبدنو بېلابېل ډولونه وپېژنو او بيا يې د لمسې حس په واسطه خپله پيژندنه بشپړکړو.

مختلفې اوبدنې موږ په خپله شاوخوا کې تجربه کوو دا پر دوو ډلوويشل کېږي، طبيعـي اوبـدنې اومـصنوعي اوبـدنې په طبعيت کې ډېر زياتې اوبدنې ليدل کېږي. په طبيعت کې انسانانو د مصنوعي اوبدنو د جوړېـد ولپـاره لـه طبيعـي اوبدنوڅخه الـهام اخيستی دی. اوبدنې د کيفيت له نظره په د وو ډلووېشل کېږي. هوارې اوبـدنې يـوازې د ليدلوپـه واسطه په مناسبه روښنايي کې د پيژندلو وړدي  بـصري اوبـدنې او ځينـې نـورې اوبـدنې چـې لـوړې اوژورې لـري. سربېره  پر ليدلو د لمسې حس په واسطه هم پېژندل کېدلای شي.

په طبيعت کې بېلا بېلې هوارې اوبدنې  په بېلابيلو رنګونو شتون لري چې د مختلفورنګونودرلود ونکـي دي، لکـه: ملغلرې، د ګلانوپاڼې، هوارې ډبرې، د  د لفين د بد ن پوستکی، پنګـو او انـسان. ځينـې طبيعـي اوبـدني سـربېره پـه بصري ارزښت لامسه يې ارزښت هم لري، لکه: د ونو د  تنې پوستکی، د مېږو وړی، د کشپ د شاډبره، د کب د بد ن پوستکی د مارپوستکی، د خربوزې او اناناس پوسـتکی.انـسانانو پـه مختلفواوبـد نـوکې چـې پـه خپـل لاس يـې جوړې کړيدي  له طبيعت څخه يې الـهام اخيـستی دی. د مثـال پـه توګـه بـصري اوبـدنې درخـت پـه ټوټـوکې پـه بېلابېلوطرحوخال لرونکي، راهدار،څلورخانه يې ليدل کېږي.

بصري، لامسي اوبدنې په زيږو او پنډوټوټو، لکه: مصنوعي څرمـنې، قـالينې، بـوجۍ، مـخ پټـوونکی، پـښوپټوونکی د ديوال سطح، پوزي، ګل لرونکي شيشه،کاشي اوسراميک په برجسته ډيزاينونو ښکلي کېږي.

د بصرې – لامسيې او بدنو د جوړېدو لپاره له مختلفو لارو، لکـه: د رنـګ شـيندل، رنـګ مـالي، تـوږل، غوڅـول يـا قالب جوړول اومـهر څخه ګټه اخيستل کېږي.

هنرمندانوپه کاشي کاري، خښتوکارولو، په فلز باندې  د قلم وهلو، په لرګي کې شبکه جوړونه، ختمه یادبره، په ګچ اولرګي کې کیندنې، په لاس ګنډل شوي شیان، لکه: ګل ګنډیاسکویي، ټغراوبد نه، قالین اوبدنه، د لاسي صنایعوبېلابېلې څانګې، حسن خط، انځورګري، هیکل جوړونه اومعماري مختلفې اوښکلې اوبدنې جوړوي. په زیاترو انځورګریواوحسن خط کې بصري اوبدنې لېدل کېږي، ولې په کند نکاریو، شبکه کیندلو اوقالبونوکې بصري – لامسیي اوبدنې وجود لري.

**تناسبونه**: په اووم ټولګي کې زده کوونکی د طبیعت، تصویرونو له الفباسره بلدشول. په اتم ټولګي کې دعنصرونوترمنځ پراړیکو ټینګار شوی دی، لکه: څرنګه چې د الفباتوروله ترکیب څخه کلمې جوړېږي او د کلمو له یوځای کېدوڅخه جملې منځ ته راځي همدارنګه په طبیعت کې دخط شکلونه، رنګونه اوجوړښتونه په زیاته اندازه وجودلري چې دطبیعت جملې جوړوي.

یوه ونه چې د تنې، ښاخونو(خطونه ) پاڼواو دهغې دشینوالي (حجمونو) مجموعه ده. ښوونکی کولی شي، له زده کوونکووغواړي چې په یوه الوتونکي، میوه، ګل اوهره بله نمونه کې دطبیعت الفبا وښیي اونوم یې واخلي.

په بل پروګرام کې زده کوونکي دخطونو،شکلونو، رنګونواومختلفو جوړښتونوترمنځ اړیکوته پاملرنه وکړي، د اندازې اوشکل ترمنځ اړیکه پر تناسبونوپورې اړه لري، هریوزده کوونکی دی د خپلې خوښې ځاروي وټاکي او دځاروي د بدن د بېلابېلو برخو د اندازو اوشکلونو د تناسبونو په هکله دې پخپلوکې سره وغږېږي. په ترتیب سره دې زده کوونکي د مختلفوځارویو په هکله سره وغږېږي.د اندازواوشکلونوترمنځ پرتناسب سربېره هره طبیعي پدیده تناسب اوښکلالري. له زده کوونکووغواړئ چې په طبیعي بېلابېلو پدیدو کې، لکه: مېوو، سابو او ګلونو ترمنځ تناسبونو ته پاملرنه وکړي،کومې حیرانوونکي نمونې چې پیداکړي، نوروټولګیوالو ته یې هم بیان کړي او که امکان لري نمونې یې هم وروښیي.

د جوړښتونو او تناسبونو د بیان لپاره ډېرښه مثال کیشپ او یا د هغه تصویردی. د کیشپ بدن ښکلی اوحیرانوونکی دی. دا جوړښتونه د تناسب اړیکه جوړوي او د څېړنې وړدي. دکیشپ دورمېږ د لاندنۍ برخې جوړښتونه د لاسو له جوړښتوسره وصل دي، چې د دواړوځرنګوالی د کیشپ او د هغه له تیرې سره هم غږي لري. زده کوونکي دې هغه مناسبه نمونه چې لاس کې یې لري، روښانه کړي اوخبرې دې پرې وکړي. د طبیعي بېلابېلونمونوپیداکول، دخطونو ترمنځ تناسبونه، شکلونه، رنګونه جوړښتونه باید زده کوونکوته بیان کړو او دوی طبیعت لټونې ته وهڅوو او د طبیعت دکتاب لوستلوته یې وهڅوئ.

**لرې اونږدې**: په هنرکې دایومطرح بحث دی، چې موجودات اوپدیدې په فضاکې څه ډول ښکاري، د انسان سترګې د فاصلې په دلیل هغه څه چې لرې، واقع دي کوچني اوکم رنګه لیدل کېږي. دې مفهوم ته د(سترګوخطایي) وایي، ځکه چې په حقیقت کې نه پدیدې وړوکې شوي او نه یې هم په روښانتیا یا شفافیت کې کوم تغییرراځي.په رسامۍ اونقاشۍ کې دلریوالي ښودلو لپاره بېلا بېلې لارې موجودې دي، چې دتاریخ په اوږدوکې په مختلفوتمدنونوکې سرته رسېدلې دي. ماشومان دلرې اونږدې لپاره پر زړه پورې لارې منځ ته راوړي اوفضا په

غیرواقعي ډول په خپلو انځورونوکې ښیي. دوخت په تېرېدوسره چې زده کوونکي لویېږي، د ودانیو او پدیدو لریوالي اونږدېوالي ته پاملرنه کوي ،غواړي چې هغه په خپلوانځورونوکې په ښکاره توګه وښیي. ښوونکی کـولی شـي، چې دوی وهڅوي چې په ځیرسره ورته وګوري او له دوی څخه وغواړي چې هغه څه چې انځوروي، په ډېرغور او دقت بې رسم کړي، ترڅو له واقعیت سره نږدې والی ولري. کوچني کول اولویول په موجوداتوکې لرې اونږدې رابنسي. کـه دوه ښـکلونه یـو مـخ تـه اویـو د هغـې شـاته پرمیزکېـږدو چـې د شاشـکل یوڅـه پـټ کـړي، دا یـوه بلـه لاره دپرسپکتیو(لرې اونږدې ) ده. که چېرې ځیني زده کوونکي د دې توان پیداکړي چې هغه څه چې غواړي رسم کړي، ځانګړي وخت ته اړتیا لري، امکان لري، چې ځیني له دوی څخه د پرسپکتیو د رسـمولو د پیژنـدلو اوسـرته رسـولو توان ونه لري. ښوونکی باید له ډېروساده لاروڅخه ګټه واخلي. دپرسپکتیوبله ساده لاره چې پـه نقاشـی کـې کـارول کېږي، هغه داده چې هغه څه چې نږدې ښکاري د صفحې په لاندنی برخه اوهغه څه چې لرې ښکاري، دصـفحې پـه پورتنی برخه کې رسم شي. کله کله ماشومان او نوي ځوانان په خپلوانځورونو کې له دې لارې څخه ګټه اخلي.

**ریتم:** ریتم د خطونو،شکلونو، رنګونو، اندازواوجوړښتونوترمنځ اړیکه محکموي. هرډول تکرارچې قاعده اونظم ولري، ریتم منځ ته راوړي. ریتمونه په دووډلومنظم اوغیرمنظم وېشل کېږي.که دخطونو، رنګونو، یادانـدازو د تغییـرد تکرارفاصله یوشان وي، منظم او یو نواخت ریتم منځ ته راځي، لکه: دجواروپه دانو، دبوټوپه اغزیو او دخربـوزې پـه زړیوکې دا منظم تکرارد‌ی چې منظم ریتم یـې بـولي. کـه چېرتـه فاصـله دخطونـو، رنګونـو تـرمنځ انـدازې مختلفـو فاصلوکې راټوکېدلي وي، لکه د انارو دانې چې په هره برخه کې ځانګړی نظم لري، منظم ریتم دي.

له ریتم څخه په نقاشی کې په بېلابېلوبرخوکې ګټه اخیستل کېږي دمثال په توګـه زده کـوونکي دمنظـرو د انځورولـو پروخت کې هغه ځانګړي ریتم چې د دو فاصلو ترمنځ وجود لري وښیي اوکوښښ وکړي چې فاصلې او دونواندازې پـه پـام کـې ونیسي اوپـه انځورونـوکې یـې وښـیي. پـه غرنـی منظـره کـې چې کورونـه پـه غروکـې جوړشـوي وي، دکورونودانـدازو اوفاصـلوریتم پـه پـام کـې ونیـول شـي، بیـادې انځورشـي، پـه هـره ونـه کـې ځـانګړي تناسـبونه د تنې د ښاخونوترمنځ وجودلري او ډېرښکلی ریتم منځ ته راوړي. دونې دانځورولوپروخت باید زیاته پاملرنه وشي اوبیارسم شي. دطبیعت پر نقاشی سربېره په ښکلونوطرحوکې ریتمونـه لیـدل کېـږي. دبېلابېلونمونودکـاپي کولـوپر وخـت دخطونـو، رنګونو،شکلونو او اندازو ریتم ته باید ښه ځیرشواوهغه په ډېرغور انځوراورنګه کړو.

رنګه ریتم په طبیعي موجوداتو کې په زیاته پیمانه لیدل کېـږي، لکـه: دغومبـسې پـه بـدن کـې دزیړاوتوررنـګ ریـتم، درنګونوریتم دکب په بدن کې، د لمر ګلي د رنګونو ریتم،په هنري اثاروکې پـه ځـانګړي ډول پـه زینتـي طرحـوکې د رنګونوریتمیک تکرارد دې سبب شوي دي، لکه: د قالینوپه طرحوکې درنګونوریتم، ګل ګنډ، کاشي کاریوچې ټوله سطحه یې په مختلفورنګونوپوښلې ده. د رنګونومنظم تکرارپه منظموفاصلوکې دښکلاسبب کېږي.

د هنرښوونکي کولی شي له زده کوونکوغواړي چې دبېلابېلوطبیعي پدیدوریتمونه وځېړي اوهم وګوري چې په هره طبیعي پدیده کې څه ډول ریتمونه وجودلري، آیـا پـه انـدازوکې ریتمونـه یـا پـه رنګونـوکې شـکلونه لیـدل کېـږي. زده کوونکي د څېړنو په ترڅ کې په دې ټکي باید وپوهېږي، لکـه: د ښې او انـدازې لـه مخـې د ودانیـو پـه رنګونـو کـې

یوښکلی ریتم را منځته کوي، د طبیعت د نمونو د تناسبونو او ریتم پیداکول، ځېرل اوپلټل له زده کوونکوسره مرسته کوي چې په کتنوکې پراختیا ومومي. دلیدنوتوان بې زیات شي او درسامی اولاسي کارونوپه مستقیموفعالیتونوکې زیات تاثیرلري.

**هنري وسیلې**: د هنرمضمون په هردرسي ساعت کې چې عملي فعالیتونه، لکه: انځورگری او یا لاسي کارونه سرته رسېږي، ځانگړي سامان اووسیلوته اړتیاده. داوسیلې د اووم ټولگي په کتاب کې په درو ډلو اثر پرېښودونکې، اثرمنونکي اوکومکي وسیلو تقسیم شوي دي چې په بېلابېلوهنري فعالیتونوکې کارول کېږي.

د هنرښوونکی باید پاملرنه وکړي چې که هغه مواد اووسیلې چې په کتاب کې یې یادونه شوي ده، په لاس کې نه وي کولی شي چې ورته وسیلې یې ځاي ونیسي او فعالیت پرې سرته ورسوي. دوسیلونشتوالی د دې دلیل نشي کیدای چې له فعالیتونوڅخه صرف نظروشي. هرښوونیز پروګرام ځانګړی تاثیرلري ا و د هغې سرته رسول ضروري دي. نوکه آبي رنگ په لاس کې نه وي، په رنگه پنسل، پلاستیکي رنگونوچې د رنگمالی لپاره کارول کېږي، رنگه طبیعي پوډر یا هره هغه ماده چې ستاسې په چاپیریال کې وي، هنري فعالیتونه پرې سرته ورسوي.که مناسب کاغذمونه درلود، دشیرینیودقطی له کاغذ یا د بوټو له قطیوڅخه گټه واخلئ. که سلیښت مونه درلودل، یوڅه بورې ته اوبه واچوئ او د کاغذونو نښلولو لپاره یې وکاروئ. که زده کوونکي مویک نه لري.مویک جوړول تاسې په تصویرکې وینئ، د هغې جوړول دوی ته ورزده کړئ. یوله لارو څخه چې د هنرښوونکي یې کاروي، داده چې له زده کوونکوڅخه وغواړئ چې دفعالیتونودسرته رسولولپاره مناسب کاغذونه، رنگونه اونورموادپیداکړي. د وی داسې شیان پیداکولی شي چې دنوروزده کوونکولپاره هم دگټې اخیستنې وړشي. شاید ځینې زده کوونکي په نوو فکرونو داسې وسیلې جوړې کړي چې په هنري فعالیتونوکې گټورې تمامې شي.

په کلي ډول عنوان شوي وسیلې دفعالیتونودسرته رسولولپاره یوه بهانه ده، نشتوالی یې د پروگرام دسرته رسولومانع نه گرځي، د هرلوست په پای کې دزده کوونکو آثارننداریې ته وړاندې کړئ، ترڅودوی یو د بل کارونه وگوري اوتجربه ترلاسه کړي. یوله لارو څخه داده چې په پړي یا تارباندې انځورونه وځړول شي اوپه مناسبه ارتفاع کې قرار ولري چې ټول یې ووینې. د حجمونو د لیدلولپاره چې دلاسي کاروپه پروگرام کې شامل دي،کولی شي د ټولگي له میزونوڅخه او یاد میزونوترمنځ له فاصلې څخه گټه واخلئ، ترڅوټول حجمونه ولیدل شي. د هر ټولگي د پرمختگ لپاره، مهمه داده چې زده کوونکي باید وهڅول شي چې د هرنوي فکر، په کارونو کې نوښت، په زړه پورې وسیلوجوړول او د نظافت په ساتلوکې هڅول دي.

د هنردښوونکي ډېرمهم کارداده چې دوخت مدیریت وکړي، چې په درسي ساعت کې موضوع معرفي کړي، هغه څه چې دموضوع په اړه ضروري دي بیان کړي، هغه عکسونه چې دموضوع په پېژندنه کې مرسته کوي، وروښیي اوله زده کوونکووغواړي چې په رسامی کې د کار له تماميدووروسته خپل آثار د ننداریې لپاره کېږدي ، بیادې وهڅوي، د کارو په هکله دې سره وغږېږي اوپه پای کې دې ورته لارښوونه وکړي چې د ځان اوټولگي دنظافت په اړه هلې ځلې وکړي.

## ۲-۲ – په متوسطه یامنځنۍ دوره کې انځورګري:

پـه لـومړنۍ دوره کـې دزده کوونکوانځـورګري خاصـې ځانګړتیـاوې لـري. هغـوی هرڅـه چـې احساسوي،د ذهنـي شکلونواورنګونوپه مرسته یې نندارې ته وړاندې کوي. اندازه یـې سـره ورتـه والـی نـه لـري. هغـه څـه چـې دوی تـه ډېرارزښت لري، لوی اوغټ انځور دي. د ودانیو داخلي او باندنۍ فضایوځای تصویروي. ترڅوهغه څه چې دکـوټې په دننه کې واقع کېږي وښيي. غواړي پر یوه وخت کې بېلابېل شیان رسم کړي، په یـوه صـفحه کـې یاڅوپاڼو کـې کیسه یا داستان وکاږي، په یوه صفحه کې دڅورتیااوپرسپکتیو، د ښودلو، ځانګړي طریقې په نـوي ډول توضـیح کـړي. باید وپوهېږوچې دا ځانګړتیاوې دوخت په تیرېدو سره تغییرکوي. د زده کوونکو له فزیکي ودې سـره سـم پـه ذهنـي لحاظ هم پراختیاکوي، واقعیت او واقعي نړۍ ته ورنږدې کېږي. لرلـړ تناسـبونو او انـدازو تـه پاملرنـه کـوي. واقعـي رنګونه د رنګه کولولپاره کاروي، په (پرسپکتیو) پوهېږي او غواړي هغه څه چې ویني انځوربې کړي.

په تولیز ډول منځنۍ دوره د ماشومتوب اولویتوب ترمنځ واقع ده، نوځکه دزده کوونکولیدنې لویانوته ورنـږدې کېـږي. داتغیرمشخص ندئ چې په کوم سن کې صورت نیسي.ځکه د هرزده کوونکي شرایط بېل بېل دي. نو په دې اساس لـه واقعـي نـړۍ څخـه انځـورګري او لـه اسـلامي هنرونوڅخـه کـاپي کـول د دې پروګرامونووړانـدې کـول لـه زده کوونکوسره مرسته کوي چې هغه څه چې په خپل ذهن کې مجسم کوي، انځورکړي.

داډول فعالیتونه دماشومتوب دورې ذهني خلاقیت ته ادامه ورکوي او دمفکورې د وړاندې کولو شتون برابروي. پـه طبیعي ډول د ماشومتوب له دورې وروسته د مختلفوموضوعګانو د تجسم توان د تصویرونو پـه جوړولـوکې کمېـږي ذهني انځورګري په دوو ډولووړاندې شوې ده لومړی ( اتفاقي انځورګري) نومېږي. په دې معناچې لومړی ځانګړې موضوع زده کوونکوته نه وړاندې کېږي، بلکې دیوه فعالیـت پـه جریـان کـې دوی کـولی شـي چـې لـه خطونویـا لـه جوړوشویوسطحو څخه استفاده وکړي، په هغې کې دې شکلونه پیداکړي اوخپلې ذهني مفکورې دې انځورکړي.

دوی له خطونو، شکلونو او رنګونوڅخه په ګټه اخیستلو د خپلې خوښې موضوع ترسیموي. دا طریقه د زده کوونکو ذهن فعالوي او ددوی د خلاقیت غوټې خلاصوي. په دویمه طریقه له مختلفوموضوع ګانوڅخه ذهنـي انځـورګري، ځانګړې موضوع زده کوونکوته وړاندې کېږي او دوی خپل ذهني تـصویرله موضـوع څخـه نقاشـي کـوي یعنـې پـه شکل جوړولوپیل کوي. دذهني انځورګرۍ په پروګرام کې ښه داده چې لومړی زده کوونکي دلوسـت لـه موضـوع سره بلدشي. دموضوع په اړه پر مختلفوطریقو د لوست اړوند معلوماتووړاندې کـول. د بېلابېلوتـصویرونوښودل چـې دموضوع په هکله پوره معلومات زده کوونکي ته ورکړي. د خوښې شوې موضوع په بـاره کـې ( دموضـوع مختلف حالتونـه یـا د موضـوع ځانګړتیـاوې ) پخپلومنځـوکې د زده کوونکـوخبرې اتـرې او د ښـوونکي پـرې غربېـدل، زده کوونکي انځورګري ته تیاروي.

سربېره پردې کولی شو د موضوع په اړه بېلابېل تصویرونه زده کوونکو ته وروښیو،ترڅو دوی یې پرتله کـړي. خـو د انځورګري پر وخت باید تصویرونه پټ شي، ترڅو دوی تقلید ونه کړي او د هر یو خپله هغه یادونه چې د تصویروله لیدلوڅخه یې لرې وکاږي، په یاد ولرئ چې په مختلفوذهني انځورونوکې غیرواقعي رنګونه پخپلوکاروکې وکاروي او

دوي باید مجبورنکړو چې د اصل په شان کاروکړي. د ذهني انځورګرۍ دوراندې کولویوه موخه داده چې له یوې موضوع څخه بېل بېل تصویرونه منځ ته راځي، له واقعي نړۍ څخه انځورګرۍ په هغه پروګرام کې شامله ده چې زده کوونکي خپل چاپېریال ته په ځیرکتیا سره پام وکړي،

شکلونه، رنګونه او مختلف جوړښتونه سره پرتله کړي او تناسبونه، لرې، نږدې او بېلابېل ریتمونه په خپلو انځورګریوکې په کاریوسي. دا پروګرام کاملاً ذهني فعالیت دی او له زده کوونکوسره مرسته کوي، چې ذهني او واقعي نړۍ بې پر یوه وخت انکشاف وکړي. په دې فعالیت کې موضوع د زده کوونکو په مخکې پرته ده او دوی باید هغې ته په ځیروګوري اوشکلونه، رنګونه، جوړښتونه اواندازې وګوري. هغه څه چې لرې دي او یانږدې دي، پاملرنه اوتجربه کړي. دشکلونوځنګ پرځنګ کېښودلوکې لرېوالي اونږدېوالي ته پاملرنه وکړي، ریتم ته پاملرنه په انځورګرۍ کې زیات ارزښت لري. دغرونوترځنګ دونو د شتون ریتم، دمنې په موسم کې دونو د پاڼو د رنګونوریتم، یاپه بازارکې د میوه پلورونکو دوکانونه د هرډول منظم تکرارچې د خطونو، شکلونو، رنګونو، جوړښتونو اندازه پکې لېدل کېږي.

باید دپاملرنې لاندې ونیول شي، ترڅوزده کوونکي بې په خپلوتقاشیوکې وښیي چې د دې فعالیت اصلي موخه له طبیعت څخه (ریالیستي) تقلیدنه دی، بلکې، دا موضوع له زده کوونکوسره مرسته کوي چې له طبیعت څخه خپلې لومړنۍ تجربې دکاغذ پر مخ انځورکړي.دوی څه ډول ګوري؟ پخپلوانځورونوکې څومره بریالي دي اوکوم ټکي باید دوی ته ووایو، ترڅو په کتنوکې ډېرغور او دقت وکړي. ښوونکی باید زده کوونکي ته انځور ونه کاږي او یا دکار په وخت کې د دوی په ځای تصمیم ونیسي.

د ښوونکي باید پام وي چې زده کوونکی پدې سن کې کولی شي چې د منلو وړتصویرونه وباسي خو د طراحي اوانځورګري سیوري او روښني چې لویان یې انځورولی شي، ددې ټولګي د زده کوونکوپه هنري توان کې شتون نه لري، باید دوی دې کارته مجبور نه شي چې دلویانوپه شان کاروکړي. په حقیقت کې دا پروګرام د لویانودریالېزم په نقاشۍ کې منځنۍ ځای لري. دریمه ډله دنقاشۍ پروګرامونه چې په اتم اونهم ټولګي پورې اړه لري، داسلامي هنرونوکاپي کولوته ځانګړي شوي دي. دافعالیتونه د هنر تاریخ له درسونو سره په نظرکې نیول شوي دي. په دې درسوکې داسلامي دورې دطرحو تمرینونه اوډیزاینونه دکاپي په بڼه وړاندې شویدي. په دې تمرینونوکې دکاپي کولو له طریقې سربېره د طرحو د سرته رسولو نظم، تناسبونه، ریتم او ښکلا د زده کوونکو ذهن ته انتقال مومي او د دې طرحودرنګونودزده کړې ټینګاردزده کوونکودښکلاپېژندنې روحیه پیاوړې کوي.

## ۲- ۲- د منځنۍ دورې انځورګري.

د دې دورې زده کوونکي چې په څه پوهېږي او یا یې احساس کوي، د شکلونو او رنګونو په مرسته یې په ذهني ډول انځوروي او ننداري ته یې وړاندې کوي. اندازې یې واقعیت ته ورته نه وي هغه څه چې دوی. ته زیات ارزښت لري، لوی یې انځوروي. د ودانیو داخلي او خارجي فضا یو ځای انځوروي، ترڅو هغه څه چې د کوټې په دننه کې پیښېږي ښکاره کړي. بېلابېلې پېښې په عین وخت کې رسموي او یا د یوې کیسې مختلفې صحنې په یوه

پاڼه کې انځوروي. په يوه صحنه کې د ژوروالي او پرسپکتيو د ښودلو لپاره، ځانګړې طريقې په نوښتګره توګه سرته رسوي.

بايد متوجه ووچې دا ځانګړتياوې د وخت په تيريدو بدلون مومي. د زده کوونکو له فزيکي ودې سره سم لـه ذهنـي پلوه هم پراختيا پيدا کوي. واقعيتونو او ربښتني نړۍ ته نـږدې کېږي. لږ لږ يې تناسبونو او واقعـي اندازوتـه ورپـام کېږي. واقعي رنګونه د رنګه کولو لپاره کاروي او ( پرسپکتيو) باندې پوهيږي او کوښـښ کـوي چې هغـه څـه چې ويني په ربښتيني ډول يې انځور کړي. په کلي ډول منځنۍ دوره د لويـانو او ماشـومانو تـر مـنځ واقع ده، نـو ځکـه زده کوونکو د لويانو په شان فکر کولو ته ورنږدې کېږي. دا بدلونونه مشخص نه وي چې په کوم سن کې صورت نيسي ځکه چې د هر زده کوونکي شرايط فرق کوي، له دې امله د انځور ګرى د ځـانګې فعاليتونـه د زده کوونکـو د وس او ځانګړتياوو سره مناسبې بلل شوي او په پام کې نيول شـوي دي. وړانـدې شـوى پروګـرام درې برخـې لـري ذهنـي انځور ګري، له واقعي نړۍ څخه نقاشي او د اسلامي هنر د کاپي کولو نمونې لري. د دې پروګـرام وړانـدې کـول لـه زده کوونکو سره مرسته کوي چې د ماشـومتوب لـه دورې څخـه د لويـوالي تـر دورې پـورې فعاليتونـه پـه ډېـر ښـه صورت تر سره کړي. ځکه چې دا فعاليتونه د دې دورې په خاصو ځانګړتياوو پورې اړه لري او د دوی ځينې اړتياوې پوره کوي.د انځور ګرۍ ذهني پروګرام له زده کوونکو سره مرسته کـوي چې هغـه څـه چې پـه خيـال کـې يـې لـري وکاږي. دا ډول فعاليتونه،د ماشومتوب د دورې ذهني خلاقيت تـه دوام وربخـښي، د ځـانګړې مفکـورې د وړانـدې کولو امکان برابروي، په طبيعي ډول د ماشومتوب دورې له تېرېدو وروسته د بېلا بېلو موضوعګانو د رامنځ تـه کولـو او په ابتکاري ډول د تصويرونو جوړول کميږي، خو کولي شو چې په پرله پـسې تمرينونـو دا ځانګړتيـاوې وسـاتو او ترسره يې کړو. ذهني نقاشي په دوو صورتونو کې وړاندې شوې ده. چې يوه يـې ( ناخـايي نقاشـي) نـوميږي پـه دې معنا چې زده کوونکو ته په لومړي سر کې خاصه موضوع نه ورکول کېږي، بلکې دوی کولی شي د فعاليتونو د اجرا پر وخت له پيدا شويو خطونو او سـطحو څخـه ګټـه واخلـي، پـه هغـې کـې دې شـکلونه پيـدا کـړي، خپلـې ذهنـي مفکورې دې نقاشي کړي.

د اووم ټولګي د کتاب د دويم لوست په شان چې د منحني يا اريـب خطونـو پـه مرسـته پـوره شـکل نقاشـي کـړي: دخطونو حالتونه د دوی په ذهن کې آشنا شکلونه وریاد وي، د نورو خطونو او شکلونو په ورزياتولو د خپلې خوښـې وړ ښه انځوروي. دا طريقه د زده کوونکو ذهن فعالوي او د دوی خلاقيت ته پراختياورکوي. په دويمه طريقه کـې يـا د بېلا بېلو موضوعګانو ذهني نقاشي او يا يـوه ځـانګړې موضـوع زده کوونکـو تـه وړانـدې کېـږي، ترڅـو دوی ذهنـي تصويرونه انځور کړي يعنې د شکل په جوړولو پيل کوي. د انځور ګرۍ په پروګرام کې به ښه دا وي چې لومړی زده کوونکي د لوست له موضوع سره بلد شي، د موضوع په اړه لازم معلومات په مختلفو طريقو سرته ورسوي.

د بېلا بېلو تصويرونو چې د موضوع پـه اړه معلومـات ورکـړي او د زده کوونکـو پـه واک کـې يـې ورکـړي،د پـام وړ موضوع په برخه کې ( د موضوع مختلف حالتونه او ځانګړتياوې) په خپل منځ کې د لوست د موضوع په هکلـه لـه زده کوونکو سره د ښوونکي غږېدل. دا هغه طريقه ده چې زده کوونکي د انځور ګرۍ لپاره تياروي.

د مثال په توګه د خپلې خوښې د فصل د انځورولو مخکې له زده کوونکو سره خبرې وکړئ، ترڅو د هر فصل ځانګړتياوې بيان کړي. د هر فصل درسونو او د موضوع په هکله فکر وکړي او بيا خپل خيالي انځور وکاږي. کولی شئ چې د مختلفو فصلونو انځورونه زده کوونکوته وروښياست، ترڅو دوی هغه سره پرتله کړي، که څه هم انځورونه بايد د نقاشي، پر وخت ترې پټ شي، ترڅو له هغوی څخه تقليدونه کړي او دوی بايد له خپل فکر څخه موضوع انځور کړي. په ياد ولرئ چې د بېلابېلو ذهني نقاشيو پر وخت زده کوونکي کولای شي چې په خپل انځور کې له غير واقعي رنګونو څخه استفاده وکړي، دوی بايد مجبورنه کړو چې په دقيقه توګه د واقعيت په څېر کاروکړي. د ذهني نقاشي يوه موخه داده چې له يوې موضوع څخه بېلا بېل تصويرونه منځ ته راشي، د رښتيني نړۍ د انځورګرۍ پروګرامونه د دې سبب کېږي چې زده کوونکي خپل چاپيريال ته پاملرنه وکړي. شکلونه، رنګونه او بېلا بېل جوړښتونه سره مقايسه کړي او تناسبونه، لرې او نږدې او ريتم په خپلو انځورونو کې وکاروي. دا پروګرام پوره ذهني فعاليتونه دي چې له زده کوونکو سره مرسته کوي چې ذهني او د واقعي نړۍ نقاشي پر يوه وخت پراختيامومي. په دې فعاليت کې موضوع د زده کوونکو مخ ته پرته ده. دوی بايد هغې ته په ځير وګوري او د شکلونو، رنګونو، جوړښتونو او اندازو ځانګړتياوې وڅېړي. هغه څه چې لرې او يا نږدې وي هغې ته ځير شي. دا تجربه کړي چې د شکلو پرله پسې کېښودلو سره کولی شو، لرې او نږدې وښيو. ريتم هم هغه بحث دي چې په نقاشي کې د زيات ارزښت وړدي. د ونو او يا د غرونو ريتم، د مني په مياشتو کې د ونو په پاڼو کې د رنګونو ريتم او يا د ميوې پلورلو په بازار کې د ميوو د رنګونو ريتم ته پاملرنه وشي، ترڅو زده کوونکي يې په خپلونقاشو کې په پام کې ونيسي. د دې فعاليت د سرته رسولو موخه د (رياليسي) يا له طبيعت څخه دقيق تقليد نه دې، بلکې دا موضوع له زده کوونکو سره مرسته کوي چې د طبيعت انځورول تجربه کړي. دوی څه ډول ګوري؟ هغه څه چې ويني د هغې په انځورولو کې څومره برياليي دي اوکوم ټکي دوی ته وواييي، ترڅو دوی پخپلو کتنو کې ډيرغور او دقت وکړي. دا بايد ووايو چې ښوونکی بايد زده کوونکو ته کوم شی رسم نه کړي او يا په بېلا بېلو برخو کې د زده کوونکو پرځای تصميم ونه نيسي. د منځني دورې هنري فعاليتونه داسي طراحي شوي دي چې زده کوونکو ته دنده سپارل کېږي، چې د مختلفو څېرکو د هر پروګرام مسؤوليت پر غاړه واخلي او له دې لارې په ځان باور ولري.

سربېره پردې د هنري فعاليتونو په تګ لاره کې يې ذهنيت او خلاقيت پراختيا مومي. نو ځکه د ښوونکي لخوا د شکل په ټاکلو، رنګونو او د کار په موضوع کې مداخله ونه کړي. د موضوع ځانګړتيا، لکه: د صفحې د فضا ډکول، د تناسبونو مراعتول، ريتم ته پاملرنه ، لريوالي او نږديوالي او د شکلواړيکه له رنګونو سره ده. د دې توضيحاتو له وړاندې کولو وروسته دې زده کوونکي په انځورولو پيل وکړي. وبه ګورئ چې زده کوونکي حيرانوونکي انځورونه منځ ته راوړي. د زده کوونکو د شکلونو انځورول به د دې سبب شي چې د زده کوونکو تصويرونه يو بل ته ورته والي ولري، نو ځکه بايد د دوی په کاروکې مداخله ونه شي. له دوی څخه دا طمعه نه کېږې چې د لويانو په شان انځورونه وکاږي، دا پروګرام د ذهن او رياليزم د نقاشيو تر منځ واقع دئ. بله ډله يې له اسلامي انځورونو کاپي کول دي چې په اتمو او نهمو ټولګيو پوري اړه لري.

## ۳-۲- لاسي کار

زده کوونکي د انځورګري په برخه کې د خط او صفحې سره بلدشول. د لاسي کار په برخه کې ديوه (حجم) د جوړولو له طريقو سره بلد ېږي، زده کوي چې خط او صفحه څه ډول په درې بعدې شکل چې فضا اشغالوي واړوي. د لاسي کار د جوړولو لپاره له بېلا بېلو موادو څخه ګټه اخيستل کېږي. په اووم ټولګي کې له سيم، رس خټه او طبيعي مواد، لکه: ډبره، لرګي او د ونو پاڼې او داسې نورکارول کېږي.

۱-۳- لاسي کار، د شيانو او حجمونو په جوړولو کې د ذهن، سترګو او لاسونو د هم غږي محصول دي. دشيانو د جوړولو په عمليه کې زده کوونکی لومړی په خپل چاپيريال کې شکل لټونه پيل کوي. په شکل لټونه کې دوی د خپل چاپيريال مشاهده کوي، هڅه کوي، داسې مواد چې کوم شکل ته ورته وي، پيدا کړي، لکه: يوه ټوټه ډبره، يا د لرګي يوه ټوټه انتخاب کړي، کېدای شي چې يوه الوتونکي ته ورته والی ولري، سترګې او مښوکه يې له رنګه موادو څخه بشپړ کړي. په شکل جوړونه کې مواد د ذهني طرحې په شان شکل ته بدلون ورکوي او جوړېږي. مواد د يو بل پر څنګ ږدي او يا يې يو له بل سره وصل کوي، ترڅو هغه شي يا شکل چې غواړې جوړيې کړي. د مثال په توګه که درس له خټې څخه ديو الوتونکي جوړول وي، په کلي ډول ويلی شو چې د لاسي کار په جوړولو کې لاندې ټکو ته پام وکړئ.

۱. د خپل چاپيريال په هکله د زده کوونکو غور، دقت او حساسيت ته زياتوالی وربخښي.
۲. د زده کوونکو تخيل، تفکر او خلاقيت ته پراختيا ورکوي.
۳. د دوی فزيکي توان او غوښتنو ته په ځانګړې ډول د بصري او لامسي حسونه غِښتلي کوي.
۴. زده کوونکي د مختلفو موادو او وسيلو او د هغې له استعمال سره آشنا کوي.
۵. د زده کوونکو پام ته بدلون او د خپل چاپيريال ښکلاته ورګرځوي.
۶. دوی له خپلو دودونو او فرهنګ سره آشنا کوي.
۷. د هغوی د بوختيا او مشغولتيا وختونه برابروي.

## د اتصال یا ترکیب ډولونه:

۱. د سوری کولو په واسطه اتصال او یا د تیرې نوکې لرونکي وسیلې یا سیخ په واسطه د نخ، رنګه فیتې، سیم او داسې نورو تیرول.

۲. د تنې په وسیله نښلول.

۳. د ستپلر په واسطه اتصال یا ګنډون.

۴. د شکاشتیپ، ګنډ، سلیښتواو په لوند شوي قندیا بوره اتصال.

۵. د قطع شوي کاغذ په واسطه، لکه: پوزی او بدل او یا د نرمو اوږدولښتو اتصال.

۶. د ستنې ، سنجاق، کرېې ستنې ، د ویښتانو، سیخک او د جامو د ګیرا په واسطه اتصال.

۷. د خټو د ټوټو یوه له بلې سره نښلول، لکه: په یوه لوښي پورې د هغې د لاستي د نښلولو اتصال. په دې اتصال کې لومړي د لاستي د نښلولو ځایونه لږ څه وتراشل شي، ترڅو زیږ شي او بیا هغه د ګوتو د فشار په واسطه ونښلول شي او نښلول شوي ځایونه د خړوبي په واسطه صاف کړي.

### په رس خټه کارکول:

ډیره ساده او په لاس کې لرونکي ماده چې زموږ په ګران هېواد کې ډېره پیدا کیږي، هغه خاوره او خټه ده. انسانانو خټې ته په شکل ورکولو ، ډیر زیات آثار تولید کړي دي. دا آثار خاویین لوښي او حجمونه دي. زده کوونکو به د خټوکارولو تجربه تر لاسه کړې وي او یا به له هغې سره آشنا شوي نه وي، دوی له خټې سره چې د خصوصیاتو له مخې یوه نرمه ، شکل منونکې او انځور منونکې ماده ده، آشنا کېږي او هغه تجربه کوي.

برجسته ډیزاینونه، معماري، ډبرې، ابتکاري، لوښي او داسې نور مصرفي او هنري شیان، پخې خښتې، کاشي، هیکلونه د هغه آثارو له جملې څخه دي چې له خټو څخه جوړ شویدي.

موزیمونو ته تګ او یا د ګران هېواد په مختلفو سیموکې په ګرځیدوکولی شو ډیر ښکلي سفالي لوښي ووینو. د سفالي لوښود جوړولو اصلي ماده درس خټه ده.

درس خټې د جوړولو لپاره، یو ورځ مخکې درس خاوره په پرویزي چڼ کړئ. یوه اندازه خاوره په یوه لوښي کې واچوئ، لږې اوبه پرې واچوي او په ارمتیا بې د اوږو په شان واخښئ او په سوکونو یې ووهئ تر هغو چې ورسیږي هر وخت چې خټه په لاسو پورې ونه ښلي اوبه یې په اندازه دي. تیاره شوي خټه په یوه پلاسټیکي کڅوړه کې ونیچې او وي ساتې.

د کار په وخت کې لږڅه خټه لوله کړئ او بیایې کرِه کړئ، خو په دې شرط چې چاودون پکې پیدا نه شي. که چاودون یې پیدا کړ خپل لاس لوند کړئ او د ګوتو په فشاریې سره ونښلوئ، ترڅو جوړ شي.

هر څومره چې درس خټه زیاته وساتل شي د شکل منلو خصلت یې زیاتېږي، دخټینو لوښو جوړول په درو طریقو لاسي، څرخئ او قالبي سرته رسیږي. خټه تر وچیدو وروسته کلکیږي، اما د رطوبت په وجه بیانرمیږي. د حجم له جوړیدو وروسته دحجم وچیدل د زیات ارزښت وړدي او باید ورو ورو وچ شي، ځکه چې خټه په ازاده فضا او د

رطوبت پرته ډېر ژر وچيږي او چاودون پيدا کوي. د خټې باندني برخه کې چاودون پيدا کېږي او داخلي برخه يې لالنده وي. د داخلي فشار په وجه په باندني برخه کې چاودون منځ ته راځي، نو لازمه ده چې وچيدل يې ورو ورو صورت ونيسي. د دې کار لپاره بايد خټين حجم په پلاستيکي کڅوړه کې چې سوري ولري وپيچل شي، ترڅو محدوده هواور ورسيږي او جوړ شوي حجم د ځو ورځو په اوږدوکې وچ شي. تروچيدو وروسته کولی شو هغه د حرارت ورکولو په واسطه پوخ کړو، نو ځکه بې سفالي بولي. خټه په کوره کې د حرارت په اساس سخته او کلکېږي چې د ډېر وخت په تيريدو يې شکل تغيير نه کوي. درس خټې رنګ ترپخيدو مخکې او وروسته بدلون مومي که درس خټه خالصه وي ترپخيدو وروسته سپين رنګ غوره کوي او که چيرې د هغې په ترکيب د اوسپنې اکسيد موجود وي، سور رنګ او که په ترکيب کې يې کاربن وي، نو تور بخون رنګ اوکه ګرافيت ولري، نوخړ رنګ غوره کوي. زده کوونکي په منځنۍ دوره کې د خټينو حجمونو د جوړولو ، وچيدو او د هغې رنګه کول زده کوي.

**په ټولګي کې د کار کولو سپارښتنې**:

۱- زده کوونکي دې له پاکې خټې څخه ګټه واخلي.

۲- نوکونه يې بايد لنډشوي وي.

۳- دخټوکارولو پر وخت بايد يوپيش بند او يا د کارجامې او يازړې نارينه جامې چې تنۍ يې شاته وتړل شي ولري.

۴- دميز مخ پر پلاستيک اويا باطله کاغذ وپوښئ.

۵- د اوبو له مناسب لوښي څخه استفاده وکړئ، د اوبولوښی بايدلږ څه دروند اولوی وي، ترڅوپه اسانۍ چپه نه شي. يوه سفالي کاسه د دې کارلپاره مناسبه ده.

۶- دکارله پيل مخکې، ښوونکی له زده کوونکوسره خبرې پيل کړي، دمخکينيوتجربواو د هغه څه په باب چې دوی يې جوړه وي خبرې وکړي.

۷- زده کوونکي دې له پروګرام سره سم د خټوکارپيل کړي.

۸- دکار پر وخت دې اضافي خټه په پلاستيک کې وپېچي چې وچه نه شي.

۹- دحجم دچاودېدوپه صورت کې چاود شوي ځای ته ګوتې لمدې کړئ اولږڅه فشار ورکړئ چې سره ونښلي.

۱۰- ددووټوټوخټواتصال يايوځای کېدل، لکه: (په لوښي پورې د لاستي نښلول) همداډول دپام وړځای‌په نوک تېز شي باندې زيږ کړئ او په خړوبي اولږڅه فشار يې سره ونښلوئ.

۱۱- د کار له تماميدو وروسته دې د هغې سطحې د اسفنج اوخړوبي په واسطه ښوی کړي.

۱۲-کولی شي په بېلابېلوطريقو او له راټولو شويو موادو څخه په ګټه اخيستنه دخټين لوښي مخ په مختلفوډيزاينونو ښکلی کړي.

۱۳- پاتې خټه يې په پلاستيک کې وپېچي او په سرپوښ دار پلاستيکي کوټی کې يې واچوئ.

۱۴- د کار له خلاصيدو وروسته د اوبو لوښی پريمينځئ او په مناسب ځای کې يې کېږدئ.

۱۵- جوړشوی خټين لوښی په الماری کې د ټوټه شوو کاغذو په منځ کې کېږدي.

۱۶- له کارکولو وروسته خپل لاسونه په اوبو او صابون پرېمینځي.

۱۷- د کارجامې وباسي اوپه مناسب ځای کې یې کېږدي.

۱۸- زده کوونکي کولی شي خپل حجم له وچېدووروسته رنګه کړي. د دې کارلپاره لـه هغـه رنګونوڅخـه چـې زرپـه اوبوکې حل کېږي، لکه: روغني رنګ یا رنګ آبي خوډېرښه رنګ ابي دی، ځکه چې پـه ښـه ډول پـه اوبـوکې حـل کېږي اوله هغې څخه استفاده اسانه هم ده. د رنګه کولو پر وخت دسـطحې مطـابق لـه لـوی اویـاواړه مـویـک څخـه استفاده کولی شي، له رنګه کولووروسته پر هغه ورنس یاجلا لرونکي تیل ومښي، ترڅورنګ له منځه لاړنه شي.

## ۴-۲- د هنر له تاریخ سره بلدتیا

فرهنګ د هرملت د هویت څرګندوی دی.له تاریخي عواملو سره بلدتیا د هر هېواد په جوړښت کـې زیـات تـاثیر لري، د ملتونو په سرنوشت کې د هنر اوفرهنګ د ارزښت بیانول له ( پخوا څخه تر اوسه) د نوي نسل د زده کړې ضرورتونه دي. نو ځکه د هنر تاریخ د هر هېواد د تاریخ مـهم جز دي چې د تـاریخ پـه اوږدو کـې د ملتونـو د فکـري بدلونونو او اساسـي تغییرونـو بنسـټ ایـښودونکی دئ. د هـر هېـواد د هنـري او فرهنګـي ارزښـتونو پیژندنه،سـاتنه، ژوندي کول، رواجول او تولید د ملتونو د پرمختګ سبب ګرځي. نوځکه زده کـوونکي چـې شخـصیت یـې پـه دې دوره کې جوړښت مومي، زیات ارزښت لري.که دوی له خپل هنر او فرهنګ سره آشـنا شـول هیڅکلـه بـه د نـورو د فرهنګي یرغل تر تاثیر لاندې رانه شي، نو ځکه موږ دلته د هنر د تاریخ لنډ تفصیل وړانـدې کـړیـدي. د افغانـستان د هنر تاریخ په ۷، ۸، ۹ ، ټولګي کې په لنډه توګه په درو دورو، له اسـلام څخـه مخکـې، اسـلامي دوره او معاصـره دوره تقسیم کړیدي.ترڅو زده کوونکي د هنري ارزښتونواو د هغې لرغونتوب او مختلفو ځانګو سره بلدشي. د هنري آثارو پیژندنه د کتاب په اخر کې د موزیم پیژندنې په صفحه کې د افغانستان په هنري میراثونو باندې ټینګار شوی دی.

د هغې ارزښت، راټولول او ساتل یې په عملي طریقو مطرح شوی دی. د افغانستان د هنر د تاریخ ترڅنګ په اسلامي دوره کې د افغاني هنر لوستونه چې اسلامي دوره په معاصر فرهنګ کې ښي وړانـدې شـوي دي. د هنـري ښـوونځیو مختلفې ځانګې چې معاصري طریقې بیانوي او د افغانستان په معاصر تاریخ پورې اړه لري وړاندې شوی دي.

همدارنګه په هر ټولګي کې د افغاني لویو هنرمندانو پیژندنه چې د افغاني هنر ښکارندویي کـوي، معرفـي شـوي دي ترڅو زده کوونکو د لویو هنرمندانو د هنر له شکل نیولو او هنري حرکتونو سره آشناشي. پـه دې برخـه کـې د هـرې منطقې د تاریخي ودانیو، موزیمونو او هنري ګالریو، د هنر تاریخ، د لاسي کارونو د خـرڅلاو ځـایونو بازارونـه، د هـر ولایت مشـهور هنرمندان، د هنري او فرهنګي بېلابېلو برخو زده کړه به د زده کړې د تینګښت سبب شي.

د نړۍ د هنر تاریخ، داسې بیان شوی، چې زده کوونکي د نړیوالو هنري آثارو پر پیژندګلوۍ سر بیره به یې فرهنګـي اغیز وته هم پاملرنه وکړي چې په فکري سمون سره د نړیوالو هنري آثارو د ډولونو د بېلا بېلـو هنرونـو د رامـنځ تـه کیدو سبب شوي او په لنډ ډول بیان شوي دي.

په ټولیز ډول اتم ، یوولسم، او پنځلسم لوستونه له تاریخ څخه مخکې هنرونه او له لرغوني هنـر څخـه بیـان کـوي چې دیني او عقیدتي شکل یې نیولي دۍ او د دې هنري دورې زیات آثار ذهني بڼه لري.

په دې معنا چې هنرمندانو په هيکل جوړولو او انځورګريو کې له طبيعت څخه تقليدنه دی کړی. بلکې تناسبونوته د بدلون ورکولو، په ډېر ساده صورت شکلونه دليدنو له زاويو څخه يې واقعي نړۍ انځور کړيده. له دې تصويرونوجوړولو څخه موخه داوه چې د ملتونو ديني، عقيدتي پياوړتيا په خپلو آثار وکې وښيي، ترڅو هر څوک چې د بشر په پرمختيا ايمان لري او په هغه پورې تړلي دي، د ملتونو د تاريخ په اوږدوکې د هنري آثار و په پراختيا کې بې هلې ځلې کړيدي چې خلک ابدي عالم ته علاقمند کړي او هڅه يې کړيده چې داسې ودانۍ او يا د بل هر کوچني شي په جوړولو د خلکو پام ابدي عالم ته ورواړوي. نوځکه په دې هنرونوکې ذهنيت پر واقعي نندارو غلبه لري.

## ۳- دتدريس د پلان لارښود

د تدريس د پلان لارښود، د زده کړې موخې، د تدريس طريقې او د لوست د ارزونې طريقې بيانوي. په اخر کې د ښوونکي د تدريس فعاليتونه ( د مفاهيمو او ارزونې) او د زده کوونکو د يادولو او زده کولو فعاليتونه راښيي.

دښوونکو د زياتې بلدتيا لپاره ، د هنرد تدريس او په ټولګي کې د زده کوونکو دهنري فعاليتونو د سرته رسولو لپاره د تدريس د پلان لارښود د ټولو لوستلو لپاره وړاندې شوي دي.

**دلومړي لوست د تدریس د لارښود پلان( اووم ټولګي)**
**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**
**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیک | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **خط** | |
| ۲-د زده کـــــــړې ( پــوهنیزې، مهـارتي او ذهنیتي موخې). | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې هدفونو لاس برى شي.<br>۲- د طبیعت په شکلونوکې له خط او تقطو سره بلدشي.<br>۳- د طبیعت په شکلونو او نقاشی کې له بیلابیلو خطونو سره بلدشي.<br>۴- د طبیعت په پدیدوکې د تقطو او خطونو درک کول. | |
| ۳- د لوست ډولونه | پوښتنې او ځوابونه، توضیحي، د کاریووالی، انتقادي تفکر. | |
| ۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل | رنگه پنسل، کاغذ یا مقوا، پنسل پاک، ابیرنگ، مویک. | |
| ۵- د ارزونې لارې | ځاني کتنه، د ستاینې درجې( ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضعیف) کتنې،اړوند مهارتونه. | |
| ۲- پـه ټـولګي کـې د تــدریس او زده کــړې فعالیتونه | **پوښتنې او ځوابونه:**<br>۱- آیـا پـه طبیعــي شــکلونوکــې مــو تقطــې او خطونــه لیدلي دي؟ | وخت ۵ دقیقې |
| | **دانګیزې پارول:**<br>۲- آیا پوهیږئ چې طبیعي شکلونه له څه ډول خطونو څخه جوړ شوي دي؟ | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښـوونکي د تـدریس فعالیتونـه (د مفـاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ۱- د منحني خطونو یوه نمونه د ټولګي په توره دړه وکاږي<br>۲- په خطونو کې په شکل لټونه وغږېږي.<br>۳- د شکل جوړولو طریقه شرحه کوي.<br>۴- د زده کوونکو فعالیتونه مشاهده کوي او نتیجه یې نوټ زده کوونکو ته وایي. | ۱- د تـورې دړې لـه مخـې منحنـي خـط پخپلو کتابچو کې وکاږي.<br>۲- پـه منحنـي خطونـو کـې شـکل لټونـه پیل کړي.<br>۳- رسم شـوی منحني خـط هـرې خواتـه وځرخوي، له هرې زاویې مو چې آشـنا شـکل پکې ولیـد د خطونـو پـه اضـافه کولو یې بشپړ کړئ. | |

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

**نقطه**: د طبعیت ډېر ساده او لومړنی جزنقطه ده. د کاغذ پرمخ د پنسل کیـښودل د نقطې ډېـر سـاده نـښان یـا شکل دي. په طبیعت کې ډېرې زیاتې نقطې وجود لري، ستوري او میاشت لـه لـرې د نقطـې پـه شـکل لیـدل کېږي. د هنر له ښوونکي څخه غوښتنه کېږي چې زده کوونکي په خپل چاپېریال کې د نقطو لیدلو ته وهڅوي.

**خط**: د څونقطو له یوځای کېدوڅخه خط منځ ته راځي یاد نقطوحرکت خط منځ تـه راوړي. پـه طبیعـت کـې خطونه په درې ډوله منحني، منکسراومستقیم ویشل شوي دي. خطونه په طبیعت کـې پـه مختلفوشـکلولید ل کېږي او د هرشکل په څنډوکې یوخط ترسترګوکېږي چې د هغې حد ود ځانګړي شـکل د فـضاله اطرافوڅخـه جلاکوي.

سربېره پردې د خطونو له څنګ پر څنګ کارولوڅخه بېلابېل شـکلونه رامـنځ تـه کـېږي چې ځینـې یـې ریـتم لرونکي دي.، لکه د ګوره خره په بد ن باندې خطونه چې هم ضخیم او هم نازک دي اوپه یوه ټاکلي فاصـله یـو دبل په څنګ کې دي.

**کورنۍ دنده**:

ښوونکي دې لوست په پام کې ونیسي او د درسي کتاب له مخې دې کورنۍ دنده ورکړي.

**د دویم لوست د تدریس د لارښود پلان اووم ټولګي**
**د تدریس موده (یو درسي ساعت)**
**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیک | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | **په خطونو انځورګري** | |
| **۲-د زده کـــــــړې (پـوهنیزې، مهـارتي او ذهنیتي موخې).** | له زده کوونکو څخه غوښتنه کیږي چې د لوست په پای کې په لاندې هدفونو لاس بری شي.<br>۱- له تصویر لیدونې سره بلد شي.<br>۲- تصویر جوړونه وکړای شي. | |
| **۳- د لوست ډولونه** | پوښتنې او ځوابونه، توضیحي، د کاریووالی، انتقادي تفکر. | |
| **۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل** | رنګه پنسل، کاغذ ، ابي رنګ، مویک د اوبو لوښی. | |
| **۵- د ارزونې لارې** | ځاني کتنه، د ستاینې درجې( ډېرښه، ښه، منځنی او ضعیف)کتنې، ارتباطي مهارتونه. | |
| **۶- پـه ټـولګي کـې د تـدریس او زده کـړې فعالیتونه** | **پوښتنې او ځوابونه:**<br><br>د بیلابیلو خطونو په هکله پوښتنې او ځوابونه | وخت ۵ دقیقې |
| | **دانګیزې پارول:**<br>د نقاشی لپاره باید همیشه یوه ځانګړې موضوع په پام کې ولرئ. | ۵ دقیقې |

| | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| | ۱- زده کوونکي دې مستقیم او منکسر خطونه په کاغذ کې رسم کړي، هغه دې له هرې خوا څخه په ډېر غور او دقت وګوري.<br>۲- له هرې زاویې چې یو آشنا شکل پکې ووینې د خطونو په ور زیاتولو دی یې بشپړ کړي.<br>۳- هغه دې رنګه کړي.<br>۴- بشپړ شوي شکلونه دې ننداري ته وړاندې کړي. | ۱- مستقیم او منکسر خطونه دې د ټولګي په توره دړه وکاږي.<br>۲- په طبیعي شکلونو کې بیلابیل خطونه وروښایاست.<br>۳- په شکلونو کې د خطونو ارزښت شرحه کوي.<br>۴- د هر زده کوونکي کار وګورئ او له ځان سره یې نوټ کړئ. |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

په دې لوست کې زده کوونکي له ناڅاپي انځورونو سره آشناکېږي. د مستقیمو، منحني او منکسروخطونو له زده کړې وروسته زده کوونکي کولی شي چې له دې خطونو څخه په ګټه اخیستنه ښکلي شکلونه جوړ کړي. لومړی ښوونکي یو منحنی خط د ټولګي په توره دړه وباسي او له زده کوونکو څخه دې وغواړي چې پخپلو کتابچو کې یې انځور کړي او بیا دې خپل کاغذ هرې خواته وڅرخوي، له هرې زاویې څخه دې هغه وګوري، له هرې زوایې څخه چې کوم آشنا شکل ورته ښکاره شو، په لومړي خط دې خطونه ورزیات کړي او د خپلې خوښې شکل دې انځور کړي، بیا دې هغه رنګه او بشپړ کړي. په دې فعالیت کې لومړي خط ته په پاملرنه زده کوونکي تصویرونه پیدا کوي، نو ځکه دوی له مخکې څخه کومه ځانګړې موضوع په پام کې نه لري. د تصویرونو د لټولو لپاره باید هلې ځلې وکړي، په دې ترتیب د زده کوونکو خلاقیت پراخیتا مومي. ښوونکي دې د لومړني خط له وړاندې کولو وروسته له زده کوونکو وغواړي چې د بېلا بېلو خطونو منحنی، مستقیم او منکسر په رسمولو دې په هغې کې آشنا شکلونه ولټوي، زده کوونکي کولی شي چې دا خطونه په خپله خوښه انځور کړي او نورې نمونې یې رسم او بشپړ کړي.

**د دریم لوست د تدریس د لارښود پلان( اووم ټولګي)**
**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**
**د آرت او هنر مضمون:**

| **سرليک** | **د مطلبونو بيان** | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | **له ( اسلام څخه مخکې) د افغانستان او نړۍ د هنر تاريخ** | |
| **۲-د زده کـــــــــړې ( پـــوهنيزې، مهـــارتي او ذهنيتي موخې).** | له زده کوونکو څخه غوښتنه کيږي چې د لوست په پای کې لاندې هدفونو ته ورسيږي.<br>۱- د افغانستان او نړۍ له تاريخي دورو سره بلدشي.<br>۲- دوی له بيلابيلو وسيلو او هنري آثارو سره بلدشي.<br>۳- د ارزښت وړ هنري آثارو سره چې له بيلابيلو سيمو څخه په لاس راغلي دي خبر شي. | |
| **۳- د لوست ډولونه** | پوښتنې او ځوابونه، توضيحي، د کاريووالی، انتقادي تفکر. | |
| **۴- د زده کړې د اړتياوړ وسايل** | قلم، د درسي کتاب تصويرونه، د هنر اړوند تصويري چارتونه. | |
| **۵- د ارزونې لارې** | ځاني کتنه، د ستاينې درجې( ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضعيف) کتنې،اړوند ارتباطي مهارتونه. | |
| **۶- په ټولګي کې د تدريس او زده کړې فعاليتونه** | **د لوست په اړه پوښتنې او ځوابونه:**<br>د هنر د تاريخ په اړه خبرې اترې:<br>کوم تاريخي آثار پيژني؟ | وخت ۵ دقيقې |
| | **دانګيزې پارول:**<br>د هنري او فرهنګي آثارو په هکله مو فکر کړی دی. | ۵ دقيقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ۱- که د زده کوونکو ځوابونه سم نه وو، نو هغوی ته سم ځواب ووایي.<br>۲- دافغانستان او نړۍ هنري آثاروته د زده کوونکو پام ور واړوئ.<br>۳- د تیرو دورو د آثارو په هکله زده کوونکو ته معلومات ورکړئ. | ۱- د پوښتنو سم ځوابونه دې په غور واوري.<br>۲- د کشف شویو شیانو زده کړه او یاداشت.<br>۳- زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې د افغانستان د هنر په تاریخ وغږیږي او پایلې دې د ګروپ نماینده د ټولګیوالو په وړاندې بیان کړي.<br>۴- خپل ګروپ دې له نورو ګروپونو سره مقایسه کړي. | |

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

دا لوست د ګران افغانستان له اسلام څخه مخکې هنر له تاریخ څخه بحث کوي. د لرغون پیژندونکو څیړنې چې د هېواد په بېلا بېلو سیموکې یې لرغوني آثار لاس ته راغلي معرفي کوي. د دې لوست دوړاندې کولو یوه موخه داده چې د هنري آثارو په ارزښت او ساتنه کې کوښښ وکړي او دا د هېواد د فرهنګي میراثونو له جملې څخه دي. باید د هغې له خرابولو، کورته او نور هېوادو ته له وړلو څخه مخنیوي وشي، ترڅو راتلونکي نسلونه له هغو څخه ګټه واخلي.

**د څلورم لوست د تدریس د لارښود پلان (اووم ټولګي)**
**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**
**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیک | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع<br><br>۲-د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې). | **له هنري وسیلو سره بلدتیا**<br>له زده کوونکو څخه غوښتنه کیږي چې د لوست په پای کې لاندې هدفونو ته ورسیږي.<br>۱- له هنري وسیلو او د هغو له کارولو سره بلدشي.<br>۲- د هنري وسیلو له جوړولو سره بلدشي.<br>۳- د هنري کارو د تخلیق پوهه ولري. | |
| ۳- د لوست ډولونه | پوښتنې او ځوابونه، کتنې، توضیحي، د کاریووالی، انتقادي تفکر. | |
| ۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل | آبي رنګونه، مویک قلم، داوبو لوښی، روغني رنګونه، ورنس، پنسل، پنسل پاک، پنسل تراش، بیاتي، چاړه، سلښت، سکاشتیپ، الپن، کاغذ، مقوا اونور. | |
| ۵- د ارزونې لارې | ځاني کتنه، د ستاینې درجې( ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضعیف) د کار یووالی او ارتباطي سهارتونه. | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>د هنري وسیلو د کارولو په هکله پوښتنې او ځوابونه. | وخت ۵ دقیقې |
| | **د انګیزې پارول:**<br>آیا تراوسه مو له هنري وسیلو څخه کومه یوه جوړه کړیده؟ | ۵ دقیقې |

| | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| | ۱- زده کوونکي دې د هنري وسیلو په واسطه یو انځور وکاږي او یادې یو لاسي کارجوړ کړي.<br>۲- زده کوونکي دې په آبي رنګو او مویک قلم انځور وباسي.<br>۳- بشپړ شوي کارونه دې په ټولګي کې ننداړې ته وړاندې کړي. | ۱- ښوونکی دې له زده کوونکو یوه اندازه هنري وسیلې وغواړي.<br>۲- ښوونکی دې زده کوونکي دوسیلو سمو کارولوته وهڅوي.<br>۳- ښوونکی دې زده کوونکي د هنري کارو د تولید لپاره سالم رقابت ته راوبولي. |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

په دې لوست کې زده کوونکي له بېلابېلو وسیلو سره چې د انځورګري او لاسي کار لپاره کارول کېږي، آشنا کېږي. دوی ته سپارښتنه وکړئ چې له هغو موادو او وسیلو څخه چې په خپل چاپېریال کې یې پیژنو په هنري فعالیتونو کې استفاده وکړئ او هم هغه دې خپلو نورټولګیوالو ته ورو‌پیژني. همیشه زده کوونکي تشویق کړي چې د خپلو او د ټولګیوالو په هنري کارو سره وغږیږي. لومړی دې د کار قوي ټقطې ووایي او بیا دې د کار د ښه والي په هکله وړاندیزونه وکړي. د زده کوونکو په هنري کار غږېدل سربېره په تربیتي اړخ، د دوی د هنري کار و په بشپړولو هم اغیزه کوي.

**د پنځم لوست د تدریس د لارښود پلان اووېولګي )**

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیک | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | **سطح، شکل او حجم** | |
| **۲-د زده کـــــــړې** ( پـوهنیزې، مهـارتي او ذهنیتي موخې). | له زده کوونکو څخه غوښتنه کیږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو بری تر لاسه کړي.<br>۱- له بیلابیلو شکلونو، سطحو او حجمونو سره بلد شي.<br>۲- له هندسي او غیرې هندسي شکلونو سره بلدشي.<br>۳- په طبیعت کې د هندسي او غیر هندسي شکلونو درک کول او پیژندنه وکړاي شي. | |
| **۳- د لوست ډولونه** | پوښتنې او ځوابونه، ننداره او توضیحي. | |
| **۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل** | ددرسي کتاب تصویرونه، هغه تصویرونه چې هندسي او غیر هندسي تصویرونه ولري، پخپله طبیعت. | |
| **۵- د ارزونې لارې** | ځاني کتنه، د ستاینې درجې( ډېرښه، ښه، منځنی او ضعیف)کتنې، ارتباطي مـهارتونه. | |
| **۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | **د پوښتنو طرحه کول د مثال په توګه:**<br>تاسې په طبیعت کې هندسي او غیر هندسي شکلونه او حجمونه په ګوته کولای شئ؟ | وخت ۵ دقیقې |
| | **دانګیزې پارول:**<br>پوښتنې او ځوابونه د مثال په توګه:<br>په طبیعت کې کوم شکلونه او حجمونه هندسي او کوم غیر هندسي دي؟ | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښــوونکي د تــدریس فعالیتونــه (د مفــاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ښوونکی مکلفیت لري چې:<br>۱- دزده کوونکو جوړ شوی حجمونو او یا نقاشې کې دوی ته لارښوونه وکړي.<br>۲- د حجمونو او سطحو له جوړولو څخه مخکې زده کوونکو ته د حجمونو د جوړولو په هکله توضیحات ورکړي.<br>۳- ښوونکی دې د هر زده کوونکي کار وګوري او نتیجه دې له ځان سره ولیکي. | ۱- زده کوونکي د طبیعت له شکلونو څخه په ګټې اخیستلو د طبیعت ورته شکلونه انځور وي.<br>۲- زده کوونکي دې له رس ختمې څخه یو دایروي حجم جوړ کړي.<br>۳- زده کوونکي دې د چاپیریال له ساده موادو څخه هندسي او غیر هندسي حجمونه جوړ او یا انځور کړي. | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

زده کوونکی دې پخپل چاپیریال کې هندسي او غیري هندسي شکلونو ته په ځیر کتنې ته وهڅوی، ترڅو د دوی تخیل پراختیا ومومي او د حجمونو په جوړولو کې زیاتې بریاوې ترلاسه کړی.

د زده کوونکو پاملرنه د بیلابیلو ودانیو په ځانګړې ډول د هغه جوماتونو لورته چې کروي ګنبدې لري، ورواړوي او د فضا ارزښت چې په معماري کې حجمونه ایجادوي، ټینګاروکړي.

په اووم لوست کې سیم او یا هغه ته ورته ماده د غونډاري په شان پیچل کېږي او خط په حجم بدلوي. په نولسم لوست کې له سیم څخه غیر هندسي شکلونه جوړوي.

**د شپږم لوست د تدریس د لارښود پلان( اووم ټولګي)**
**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**
**د آرت او هنر مضمون:**

<table>
<tr><th>سرلیک</th><th colspan="2">د مطلبونو بیان</th></tr>
<tr><td>۱- د لوست موضوع</td><td colspan="2">په ګوتو ټاپه کول:</td></tr>
<tr><td>۲-د زده کـــــــــړې (پـــوهنيزې، مهـــارتي او ذهنيتي موخې).</td><td colspan="2">له زده کوونکو څخه غوښتنه کیږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو پوه شي.<br>۱- د ګوتو په واسطه له چټک چاپ سره بلد شي.<br>۲- له بیلابیلو طبیعي او مصنوعي،لاسي چاپ سره بلدشي.<br>۳- د شکل مونډلو او په هغې باندې د خطونو زیاتولو په درک او ارزښت پوه شي.</td></tr>
<tr><td>۳- د لوست ډولونه</td><td colspan="2">پوښتنې او ځوابونه، کتنه، توضیحي، د کاریووالی او انتقادي تفکر.</td></tr>
<tr><td>۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل</td><td colspan="2">آبي رنګ، نقاشي د ګوتو سرونه، کاغذ.</td></tr>
<tr><td>۵- د ارزونې لارې</td><td colspan="2">ځاني ارزونه، د ستاینې درجې، ( ډېرښه، ښه، منځنی او ضعیف) کتنې او ارتباطي مهارتونه.</td></tr>
<tr><td rowspan="2">۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه</td><td>د زده کوونکو د حال پوښتنه:<br>پوښتنې او ځوابونه د لاسي چاپ او د ګوتو د نښانونو په واسطه، طبیعي او مصنوعي مواد د ټاپه کولو لپاره کارول.</td><td>وخت ۵ دقیقې</td></tr>
<tr><td>دانګیزې پارول:<br>د پوښتنې طرح کول د مثال په توګه:<br>آیا کله مو د ګوتو په واسطه ټاپه کول تجربه کړي دي؟</td><td>۵ دقیقې</td></tr>
</table>

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ۱- ښوونکی دې په سپین کاغذ د ګوتو په واسطه د ټاپه کولو په هکله توضیحات ورکړي.<br>۲- ښوونکی دې د هر زده کوونکي کار وګوري.زده کوونکی دې هغه شکلوته چې د ګوتو له ټاپو څخه رامنځ ته شوي دي، متوجه کړي.<br>۳- د هر زده کوونکي کاردې په غور وګوري او نتیجه دې يې یاداشت کړي. | ۱- زده کوونکي دې ګوتې په رنګ ککړې کړي او په یوه سپین کاغذ دې ټاپه کړي.<br>۲- دا کار دې څوواره تکرار کړي او آشنا شکلونه دې پکې پیداکړي.<br>۳- د خطونو په زیاتولو يې بشپړ کړئ.<br>۴- له بشپړیدو څخه وروسته يې نورو ټولګیوالوته وروښيي.<br>۵- پام مو وی چې خپل کالي په رنګ ککړ نه کړئ.<br>۶- د ګوتو پر ټاپو سربېره د فلزي سکو او یا نورو مصنوعي ټاپو په واسطه خپل کارته ادامه ورکړئ. | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

په دې لوست کې زده کوونکي د ګوتو د نښانو او د ټاپه کولو،تجربه کولو سربېره کولی شي چې ټاپه په خپله بشپړ کړي، دوی ټاپوته باید په ځیر وګوري، په هغه کې تصویرونه ولټوي او په رنګه پنسل یې ټاپه بشپړ کړي، په دې تمرین کې له زده کوونکو غوښتل شوي دي چې د ګوتو په ټاپود خپلې خوښې موضوع ښکاره کړي. په بل تمرین کې له زده کوونکو غوښتل شوي دي چې د ګوتو له ټاپو څخه په ګټه اخیستنه د خپلې خوښې موضوع انځور کړي. په دې فعالیت کې د لومړني تمرین پر خلاف چې زده کوونکي په تصویر لټونه پیل کوي، باید لومړی د خپلې خوښې موضوع وټاکي، وروسته دې هغه د ګوتو د ټاپو په واسطه د خپلې خوښې انځور جوړکړي.

**د اووم لوست د تدریس د لارښود پلان ( اووم ټولګي)**

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیک | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | **د سیمې ګرې جوړېدل** | |
| **۲-د زده کـــــــړې** ( **پـــوهنیزې، مهـــارتي او ذهنیتي موخې**) | له زده کوونکو څخه غوښتنه کیږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو پوه شي.<br>۱- له سیم څخه د کروي حجمونو له جوړولو سره بلدشي.<br>۲- د سیمې کرې له جوړولو سره بلدشي.<br>۳- د سیم یا له نخي تارو څخه په کروي ډول د الوتونکي او کب له جوړولو سره بلد شي. | |
| **۳- د لوست ډولونه** | پوښتنې او ځوابونه، کتنه، توضیحي، د کاریووالی او انتقادي تفکر. | |
| **۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل** | نري سیمونه، نخ، د رجې ډبل مزي، دسنډو ډبل تارونه، رنګه کاغذ، بیاتي، سلښت، نرۍ پرۍ. | |
| **۵- د ارزونې لارې** | ځاني ارزونه، د ستاینې درجې، ( ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضعیف) کتنې او ارتباطي مهارتونه. | |
| **۶- پـه ټـولګي کــې د تـــدریس او زده کـــړې فعالیتونه** | **د لوست په هکله پوښتنې:**<br>۱- زده کوونکي دې سیم او تارونه د یوې دایرې په شکل سره وپیچي.<br>۲- په دایروې غونډ اري کې د آشنا شکلو هڅې پیل کوي.<br>۳- کله چې آشنا شکل پیداکړي د رنګه کاغذونو په ورزیاتولو یې بشپړوي. | وخت ۵ دقیقې |
| | **دانګیزې رامنځته کول:**<br>کله مو له سیمونو څخه د شکلونو د جوړولو فکر کړی و؟ | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | |
| --- | --- | --- |
| ۱- ښوونکی دې د سیمي کرې د جوړولو طریقه زده کوونکو ته ور وښیي.<br>۲- ښوونکی دې یوه ورځ مخکې زده کوونکو ته د وسیلو د راوړلو هدایت ورکړي.<br>۳- ښوونکی دې زده کوونکي په څلورو ډلوو ویشي او هغوی ته دې اجازه ورکړي چې د سیمي کرې په هکله سره وغږیږي او لازمه لارښوونه دې ورته وکړي.<br>۴- ښوونکی دې د زده کوونکو کارونه ارزیابي او نوټ کړي. | ۱- زده کوونکي دې د سیمي کرې په جوړولو پیل وکړي.<br>۲- هغه وسیلې چې لري یې له هغو څخه دې سمه ګټه واخلي.<br>۳- زده کوونکي دې کره جوړه کړي او یو د بل په مرسته دې یو ښکلی شکل جوړ کړي. | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

زده کوونکي په تیر لوستونو کې د انځورګري له موادو او وسیلو سره آشنا شوي دي. دوی زده کړي دي چې د خطونو په مرسته په یوه مخ کې رسم وکاږي او رنګه یې کړي. په دې لوست کې له یوه سیم څخه استفاده کوي. سیم د اوږدوالي لرونکي دي. زده کوونکي له هغې څخه یو حجم جوړوي یعنې داسې شی جوړوي چې د اوږدوالي،سُور او لوړوالي لرونکی وي، فضا اشغال کړي، لکه څرنګه چې پوهېږو سیمونه د جنسیت او پنډوالي له مخې ښېلا ښېل ډولونه لري، ځینې یې نري او ځینې نور یې پنډوي. ځینې یې رنګه پوښ لري او ځینې نور یې بې پوښه وي. هر یو یې په صنعت کې په خپلو ځایونو کې کارول کېږي. نرم او پوښ لرونکي سیمونه ښکلي رنګونه لري، چې ژر شکل منونکي دي او د لاسي کارد جوړولو لپاره ډېر مناسب دي. که چېرې سیم مو په واک کې نه وي، نو له ډېلو تارو څخه، لکه: نخي ډېل تارونه ، پلاستیکي پړي، د سُنډوتارونه، د غنمو ډېډر ، د ونو ښاخونه او داسې نورو څخه ګټه واخلئ. په دې لوست کې زده کوونکي د سیم د پیچلو په واسطه یو هندسي حجم جوړوي چې یو په بل کې اوبدل شوی دی. د کرې اندازه او رنګ دوی په خپله ټاکي.

**د اتم لوست د تدریس د لارښود پلان( اووم ټولګي)**

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

<table>
<tr><th>سرلیک</th><th colspan="2">د مطلبونو بیان</th></tr>
<tr><td>۱- د لوست موضوع</td><td colspan="2">د ډبرو د دورې هنر</td></tr>
<tr><td rowspan="2">۲-د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې).</td><td colspan="2">له زده کوونکو څخه غوښتنه کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.</td></tr>
<tr><td colspan="2">۱- د ډبرو دورو هنر له تاریخ سره بلدتیا.<br>۲- د بشر په لاس د جوړو شووآثارو نومونه چې په لومړنیو دورو پورې اړه لري و پیژني.<br>۳- په غارونوکې د هنري آثارو او انسانانو د ژوندانه درک وکړاي شي.</td></tr>
<tr><td>۳- د لوست ډولونه</td><td colspan="2">پوښتنې او ځوابونه، کتنه، توضیحي، د کاریووالی او انتقادي تفکر او ګروپي بحثونه.</td></tr>
<tr><td>۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل</td><td colspan="2">د درسي کتاب انځورونه، د ښوونکي توضیحات، د چارت تصویرونه.</td></tr>
<tr><td>۵- د ارزونې لارې</td><td colspan="2">ځانې کتنه، د ستاینې درجې، ( ډېرښه، ښه، منځنی او ضعیف) کتنې او ارتباطي مهارتونه.</td></tr>
<tr><td rowspan="2">۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه</td><td>پوښتنې او ځوابونه د مثال په توګه:<br>لومړني هنري آثار په کومو غاروکې موندل شویدي؟</td><td>وخت ۵ دقیقې</td></tr>
<tr><td>دانګیزې رامنځته کول:<br>د پخوانیو هنري آثارو په هکله موخه اوریدلي دي؟</td><td>۵ دقیقې</td></tr>
</table>

| | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| | ۱- زده کوونکي دې سوالونوته ځوابونه ووايي.<br>۲- د ښوونکي توضیحاتوته دې دقیق غوږ ونیسئ.<br>۳- د لوست مهمې برخې دې نوټ کړئ.<br>۴- زده کوونکي دې د لوست په اړه په خپلو گروپونو کې د پخوانیو آثارو په هکله وغږیږي.<br>۵- د غږیدو نتیجه دې د هر گروپ نماینده د نورو په وړاندې بیان کړي. | ۱- ښوونکی دې د درس په اړوند سوالونه طرحه کړي.<br>۲- که زده کوونکي سم ځواب ورنکړي، نو بیادې توضیحات ورکړي.<br>۳- معلم دې د پخوانیو آثارو په هکله توضیحات ورکړي.<br>۴- د فرانسې د لا سکو او د هسپانیې د التامیرا د غارو د نقاشیو په هکله دې معلومات ورکړي. |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

په دې لوست کې زده کوونکي د دېرو دورو له هنر سره آشنا کیږي چې په درو برخو ویشل شویدي. د دېرو قدیمي دوره ( د غارونو د دوري هنر)، د دېرو د منځني دورې هنر ( لومړني ښارونه چې د دریابونو په غاړو یې جوړ کړي وو او انسانانو په بزگرۍ او شپنې پیل وکړ)، د نوو دېرو د هنر دوره (دسفالي لوښو د څرخ اختراع او د فلزي لوښو منځ ته راتگ ) وېشل شویده. پدې ترتیب د هنري آثارو د جوړولو ارزښت د خط، فرهنگ،عقیدو او د لومړنیو انسانانو تفکر ښکاره کوي.

**د نهم لوست د تدریس د لارښود پلان( اووم ټولګي)**
**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**
**د آرت او هنر مضمون:**

<table>
<tr><th>سرلیک</th><th colspan="2">د مطلبونو بیان</th></tr>
<tr><td>۱- د لوست موضوع</td><td colspan="2">رنګونه</td></tr>
<tr><td>۲-د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې).</td><td colspan="2">له زده کوونکو څخه غوښتنه کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>۱- د طبیعت له مختلفو رنګونو سره بلد شي.<br>۲- له طبیعي معدني رنګو سره بلد شي.<br>۳- د درو اصلي رنګو د ترکیب درک وکړاي شي.<br>۴- له دریمې درجې رنګو سره بلدشي.</td></tr>
<tr><td>۳- د لوست ډولونه</td><td colspan="2">پوښتنې او ځوابونه، کتنه، توضیحي، د کاریووالی او انتقادي تفکر.</td></tr>
<tr><td>۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل</td><td colspan="2">آبي رنګونه، مویک، د رنګ پلیټ، پنسل.</td></tr>
<tr><td>۵- د ارزونې لارې</td><td colspan="2">ځاني ارزونه، د ستاینې درجې، ( ډېرښه، ښه، منځنی او ضعیف) کتنې او ارتباطي مهارتونه.</td></tr>
<tr><td rowspan="2">۷- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه</td><td>پوښتنې او ځوابونه:<br>د طبیعت د بیلابیلو رنګونو په هکله د رنګ کارول او ترکیبول.</td><td>وخت ۵ دقیقې</td></tr>
<tr><td>دانګیزې رامنځته کول: کله مو فکر کړی دی چې طبیعت ته کوموشیانو ښکلا ورپه برخه کړې ده؟<br>ستاسې په شاوخوا کې کوم شیان ستاسې توجه جلبوي؟</td><td>۵ دقیقې</td></tr>
</table>

| ۷- د ښوونکي دتدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ۱- ښوونکی دې د بیلابیلو رنګو په هکله توضیحات ورکړي.<br>۲- درې اصلي رنګونه دې ور وښیي.<br>۳- د رنګونو د ترکیب په هکله معلومات ورکړي.<br>۴- د معدني او نباتي رنګونو په هکله معلومات ورکړئ. | ۱- زده کوونکي دې د ښوونکي توضیحاتو ته په غور غوږ ونیسي.<br>۲- د رنګونو د ترکیب طریقه زده کوي.<br>۳- د طبیعي او معدني رنګونو، لکه: د پیاز پوټکي، د انارو پوټکي په هکله دې سره وغږیږي.<br>۴- دغږیدو نتیجه دې نوروته بیان کړي. | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

په دې لوست کې زده کوونکي له اصلي او ثانوي رنګونو سره بلدېږي او د رنګونو روښانه کول او تیاره کول زده کوي. په یوه اونۍ کې له زده کوونکو وغواړئ چې په خپل چاپیریال کې یوازې د ژیړ رنګ مختلفوډولونوته پاملرنه وکړي او د هغو په هکله دې څارنه وکړي. طبیعي ژیړ رنګونه په خوراکي موادو، ګلونو، څارویو کې وښیي او یا د مختلفو وسیلو، لکه: ژیړ پنسل تراش، پلاستیکي ژیړږمنځۍ، ژیړه دوسیه، د رخت ژیړه ټوټه، ژیړ موټر..... سره پرتله کړي. دا پروګرام په هره اونۍ کې دیوه اصلي او یا ثانوني رنګ په اړوند سرته ورسوئ. په دې ترتیب د شپږو میاشتو په اوږدوکې د اصلي او ثانوي رنګو په هکله ژورې تجربې ترلاسه کړئ.

له زده کوونکو وغواړئ چې تیاره رنګونو ته پاملرنه وکړي او هغه سره پرتله کړي چې تیاره رنګونه کومې ځانګړتیاوې لري؟ ولې د تیاره رنګونوپیژندل مشکل دي؟

تیاره رنګونه د هنري کارو په کوموځایو کې کارول کېږي؟ په طبیعت کې په کومو ځایو کې تیاره رنګونه لیدل کېږي؟ تیاره رنګونه په انسان څه اغیزه کوي؟ د تیاره رنګونو په لیدلو انسان ته څه احساس پیدا کېږي؟ وروسته دا تجربه د روښانه رنګونو په اړوند سرته ورسوي.

په وروستي پروګرام کې له هغوی وغواړئ چې د طبیعت رنګونه یو د بل تر څنګ څه ډول راغلي دي، دې ټکي ته هم د دوی پام ورواړوئ. ګل او د هغې د ساقې رنګونو ته دې وګوري.

**د لسم لوست د تدریس د لارښود پلان**

**د تدریس موده (یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون**:

| سرلیک | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع**<br><br>**۲-د زده کـــــــړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې)** | **د میوې د لوښي نقاشي**<br>له زده کوونکو څخه غوښتنه کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>۱- د فصل د میوو له نقاشۍ سره بلدشي.<br>۲- د طبیعي میوو له رنګونو سره بلدشي.<br>۳- په نقاشۍ کې د رنګونو په کارولو پوه شي. | |
| **۳- د لوست ډولونه** | پوښتنې او ځوابونه، کتنه، توضیحي. | |
| **۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل** | آبي رنګونه، د مویک قلم، پنسل، پنسل پاک او کاک کاغذ. | |
| **۵- د ارزونې لارې** | ځاني کتنه، د ستاینې درجې، ( ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضعیف) کتنې او ارتباطي مهارتونه. | |
| **۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | **پوښتنې او ځوابونه**:<br>د میوو او د هغې د رنګونو په هکله پوښتنې او ځوابونه. | وخت ۵ دقیقې |
| | **دانګیزې رامنځته کول**:<br>د رنګونو په هکله څه پوهیږئ؟<br>د طبیعي رنګونو په شان مو خپله نقاشي رنګه کړې ده. | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ۱- ښوونکی دې د میوې د لوښي د رنګه کولو په هکله توضیحات ورکړي.<br>۲- ښوونکی دې زده کوونکي په ډلو وویشي.<br>۳- د کار له بشپړېدو وروسته دې د زده کوونکو کار و ارزوي. | ۱- زده کوونکي دې د میوې د لوښي انځور په پنسل وکاږي.<br>۲- له رسم کولو وروسته دې هغه رنګه کړي.<br>۳- خپل ښوونکي ته یې د ارزونې لپاره وړاندې کړئ | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

په دې فعالیت کې یا خو میوې د زده کوونکو د لیدو په وړاندې واقع دي چې کوښښ کوي هغه انځور کړي؛ یا دې د انځورولو مخکې، د هر فصل په میوو خبرې اترې کوي. هر زده کوونکی میوه په یوه لوښي کې په خپل ذهن کې انځوروي او بیایي کاږي. ښوونکي باید له انځورولو مخکې د میوې د لوښي تصویرونه زده کوونکوته وروښيي، د شکل، رنګ، اندازې او جوړښتونو په هکله دې بحث وکړي، په واقعي نړۍ کې مختلفې موضوعګانې، لکه: د میوې د لوښي نقاشي ( د زده کوونکی د خپلې خوښې دفصل میوې دي)، د میوو تعداد او ټاکل د زده کوونکو په خوښه صورت نیسي، هغه باید په خپله خوښه انځور کړي. که چېرې د میوو تعداد او اندازه د صفحې په نسبت وړوکي وي او خالي فضا زیاته پاتې کېږي، ښوونکی دې زده کوونکو ته ووایي چې اندازې لوېې کړي. که چېرې زده کوونکو د موضوع د اطرافو فضاته پاملرنه نه درلوده او فضا جوړونه یې له یاده وتلي وه، ښوونکی دې له هغوی وغواړي چې د میوو د شاوخوا فضا ته دې پاملرنه وکړي. په خپلو انځورونو کې دې وښیي چې د میوې لوښی د میز په سر او که په قالینه ایښودل شوی وي، د میز د سطحې او د یوال رنګونه دې مشخص کړي.

**د یوولسم لوست د تدریس د لارښود پلان( اووم ټولګي)**
**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**
**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیک | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | **د لرغونو ځایو بین النهرین، ایران او مصر هنرونه:** | |
| **۲-د زده کـــــــړې ( پـوهنیزې، مهـارتي او ذهنیتي موخې).** | له زده کوونکو څخه غوښتنه کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>۱- زده کوونکی باید په زیګورات وپوهیږي.<br>۲- د بین النهرین له هنرونو سره بلدشي.<br>۳- د ایران د هنرونو په هکله معلومات ولري.<br>۴- د مصر د هنر په هکله معلومات پیداکړي. | |
| **۳- د لوست ډولونه** | پوښتنې او ځوابونه، کتنه، توضیحي، ګروپي بحثونه. | |
| **۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل** | د لوست د زده کړې لپاره له تصویرونو، کتابونو باید استفاده وشي. | |
| **۵- د ارزونې لارې** | په تحریري او شفاهي توګه، دستاینې درجې، ( ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضعیف). | |
| **۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | **پوښتنې او ځوابونه:**<br>د بین النهرین د هنر په هکله څه پوهېږئ؟ | وخت ۵ دقیقې |
| | **دانګیزې رامنځته کول:**<br>د لوست د زده کړې لپاره د هنر یوه تاریخي کیسه. | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښــوونکي د تــدریس فعالیتونــه (د مفـاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست په اړه د ښوونکي توضیحات.<br>۲- د لوست په اړه پوښتنې.<br>۳- د لوست توضیح کول او د هغې په اړه خبرې کول، تحلیل او جمع بندي. | ۱- د ښوونکي توضیحات او د لوست د موضـوع په اړه د زده کوونکو پاملرنه.<br>۲- د زده کوونکو ترمنځ خبرې اترې.<br>۳- د گـروپ پـه اسـتازیتوب دې زده کـوونکي لـه ښوونکي څخه پوښتنې وکړي.<br>۴- د لوسـت د ښـه والـي لپـاره دې زده کـوونکي یاداشت واخلي. | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

په یوولسم لوست کې د نړۍ لومړنی تمدن چې خط، ژبه او د تاریخ لیکنه منځ ته راغله، لومړنی دیني ټـولني وې چې غښتلي حکومتونه او په ښارونو کې یې هستوگنه درلوده، معلومات وړاندې شوي دي.

د ایران هنر له اسلام څخه مخکې له دوو برخو څخه جوړ شـویدي. لـومړي برخـه یـې د اریایـانو لـه دورې څخه مخکې ده چې د ایران په ( سیلک، مارلیک او شوش) کې لاسته راغلي دي.

دوهمه برخه یې په اریایانو پورې اړه لري چې د هغې ډېر مهم آثار تخت جمشید دی.

په لرغوني مصر کې ډېر مهم آثار د فرغونیانو قبرونه دي چې په نړۍ کې د ( اهرام) یا اهرامونو په نامـه یـادیږي. پـه لرغوني مصر کې ډېر هیکلونه د فرعون او د ملیکو په شکل جوړشوي دي. د اهرامونو په د ننـه کـې قبرونـه او نـور شیان ساتل کیږي.

**دولسم لوست د تدریس د لارښود پلان( اووم ټولګي)**

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیک | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | **له رس ختې د ساده حجمونو جوړيدل** | |
| **۲-د زده کـــــــــــړې ( پــــوهنيزې، مهـــارتي او ذهنيتي موخې).** | له زده کوونکو څخه غوښتنه کيږي چې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسيږي.<br>**۱-** د ختينو حجمونو له جوړولو سره د زده کوونکو بلدتيا.<br>**۲-** د ختينو حجمونو له ارزښتونو سره بلدشي.<br>**۳-** هغه وسيلې چې ختين حجمونه ترې جوړيږي، له هغې څخه ګټه اخيستنه. | |
| **۳- د لوست ډولونه** | کتنه، توضيحي، عملي، د کاريووالی او انتقادي تفکر. | |
| **۴- د زده کړې د اړتياوړ وسايل** | د رس ختې، د رس خاوره، پرويزه، اوبه، مخکې ترونی يادکار جامې، يوه پلاستيکي کڅوړه، د اوبو لوښی. | |
| **۵- د ارزونې لارې** | ځاني کتنه، د ستاينې درجې، ( اعلي، عالي، ښه او ضعيف) کتنې او ارتباطي مهارتونه. | |
| **۶- په ټولګي کې د تدريس او زده کړې فعاليتونه** | **پوښتنې او ځوابونه**<br>د رس ختې د لوښو په جوړولو کې کومې ځانګړتياوي لري؟ | وخت ۵ دقيقې |
| | **دانګيزې رامنځته کول:**<br>آيا تر اوسه مو له ختينو لوښو څخه استفاده کړې ده؟ | ۵ دقيقې |

| ۷- د ښـــوونکي د تـــدریس فعالیتونـــه (د مفـــاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ۱- ښوونکی دې پوښتنې طرح کړي:<br>۲- آیا پوهیږئ چې ختین حجمونه څه ډول جوړیږي؟<br>۳- ښـــوونکی دې د زده کوونکـــو ځوابونـــه واوري دارتیاپر وخت دې خپل معلومات پرې زیات کړي.<br>۴- د لوســـت موضـــوع او د زده کـــړې کچـــه دې و ارزوي. | ۱- زده کـوونکي دې د لوسـت موضـوع تـه پـوره پاملرنـه وکـړي او مهـم ټکـي دې یاداشت کړي.<br>۲- پـه ډلـه ییـزه توگـه دې پـه خپلـو کـې سـره وغږیږي.<br>۳- د هـرې ډلـې اسـتازي دې موضـوع د ښوونکي په وړاندې په ټولگي کې بیان کړي. | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د اووم ټولگي زده کوونکي په دې لوست کې د ختې له جوړولو، له شکل منلو،ډیزاین منلو سره آشنا کیږي او له یوې ټوټې ختې څخه په خپله خوښه یو هندسي او یا غیر هندسي شکل جوړوي. ډېره ساده ماده چې د انسان په شاوخواکې په زیاته اندازه پیدا کیږي، خاوره او خټه ده، انسانانو ختې ته په شکل ورکولو ډېر زیات آثار تولید کړي دي. په دې آثارو کې ختین حجمونه  او ختین لوحي شاملې دي.
زده کوونکو به له ختې څخه د شیانو جوړول تجربه کړي وي او یا به له هغې سره بلد شوي وي. په هر صورت، هغوی د کار په جریان کې د ختې له نرموالي، شکل منونکي او ډیزاین منلو ځانگړ تیاوو سره بلدتیا مومي او تجربې تر لاسه  کوي. برجسته ډیزاینونه او د لویو ودانیو شاهکارونه، دگټې اخیستلو وړ هنري لوښـي، پخې خښتې، کاشي او هیکلونه د دې آثارو له جملې څخه دي، چې له ختو څخه جوړ شوي دي. موزیمونو ته تگ او د گران هېواد په مختلفو سیمو کې په گرځیدو به وکولی شو، د سفالي لوښو ډېرې ښکلي نمونې وونو. د دې لوښو اصلي ماده د رس خټه ده. د رس ختې د جوړولو لپاره یوه ورځ مخکې په پرویزي د رس خاوره چڼ کړئ او چڼ شوي خاوره په یوه لوښي کې واچوئ، لږې اوبه پرې واچوئ او ورو ورو یې د اوړو په شان واخښئ او په سو کویې ووهی چې تیاره شي. کله چې خټه په لاس پورې ونه نښلي، نو اوبه یې په اندازه دي. تیاره شوی خټه په یوه پلاستکي کڅوړه کې وساتئ. د کار کولو پر وخت له لږ څه ختې څخه بوړ کې (لوله) جوړه  او کوږ یې کړي، که چېرته چاود نه شو، خټه د کار کولو لپاره تیاره ده او که چاود شو، نو نوریې هم واخښئ. او چاود د گوتو د فشار په واسطه سره ونښلوي.

**دیارلسم لوست د تدریس د لارښود پلان( اووم ټولګي)**
**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**
**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیک | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | **د خپلې خوښې د فصل انځورګري یا نقاشي:** | |
| **۲-د زده کــــــــــــــړې (پــــوهنیزې، مهـــارتي او ذهنیتي موخې).** | له زده کوونکو څخه غوښتنه کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>۱- د کال له څلورو فصلونو سره بلد شي.<br>۲- د هر فصل له ځانګړتیاوو سره دې زده کوونکو بلد شي.<br>۳- له هنري او فرهنګي بدلونونو سره د زده کوونکو بلدتیا. | |
| **۳- د لوست ډولونه** | توضیحي او ګروپي غربیدنه | |
| **۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل** | پنسل، پنسل پاک، کاک کاغذ، ابي رنګ، د نقاشۍ تخته، مویک د هر فصل تصویرونه. | |
| **۵- د ارزونې لارې** | د هر زده کوونکي کارته دقیقه کتنه، د ستاینې درجې، د ارتباطي مهارتونو ارزونه. | |
| **۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | زده کوونکي دې د خپلې خوښې نقاشي تر سره کړي. | وخت ۵ دقیقې |
| | **دانګیزې رامنځته کول:**<br>آیا پوهیږئ چې د کال په فصلونو کې کوم رنګونه تر سترګوکیږي؟<br>آیا د هر فصل ځانګړتیاوې په ګوته کولی شئ؟ | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښـوونکي د تـدريس فعاليتونـه (د مفـاهيمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعاليتونه | |
|---|---|---|
| ۱- ښوونکی مکلفيت لري چې د پوښتنو په طرحه کولـو د نـوي لوسـت عنـوان زده کوونکـو تـه شرحه کړي.<br>۲- ښوونکی د گروپونو فعاليتونه په غـوراو دقـت د ارزونـې لپـاره څـاري او خپـل نظريـات پـرې اضافه کوي. | ۱- زده کوونکي مکلف دي چې د لوست په اړه د ښوونکي خبرې په غور او دقت سره واوري او مهمې جملې يې نوټ کړي.<br>۲- گروپونه دې پخپلو کې سره وغږيږي.<br>۳- د هـر گـروپ نماينـده دې د بحث پايلې پـه ټولگي کې د نورو په وړاندې بيان کړي. | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

دا لوست د لسم لوست په شان سرته رسيږي. په دې فعاليت کې د هر فصل ځانگړتياوې په ټـولگي کـې طرحه کېږي او ښوونکي له زده کوونکو سره پرې غږيږي. وروسته د دوی د خپلې خوښې فصل ټاکي. د کارد پيل کولـو مخکې ښوونکي د کال د فصلونو تصويرونه دوی ته ورښکاره کوي، د انځورولو پر وخت کې دې تصويرونه يـوې خواته کېږدي، ترڅو له خپل ذهن څخه خپله موضوع ترسيم او بيا يې رنگه کړي.

**خوار لسم لوست د تدریس د لارښود پلان**
**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**
**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیک | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **د ګوتو د فشار په واسطه له رس ختې څخه د حجم جوړول** | |
| ۲-د زده کـــــــــړې (پـــوهنیزې، مهــارتي او ذهنیتي موخې). | له زده کوونکـو څخه غوښـتنه کیـږي چې د لوسـت په پای کې لانـدې موخوتـه ورسیږي.<br>۱- د منځ خالي حجمونو له جوړولو سره بلدتیا.<br>۲- د ګوتو د فشار په طریقه د حجمونو له جوړولو سره بلدتیا.<br>۳- د ګوتو د فشار په طریقه د خپلې خوښې حجم جوړول. | |
| ۳- د لوست ډولونه | پوښتنې او ځوابونه، کتنه، توضیحي، د کاریووالی او انتقادي تفکر. | |
| ۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل | د رس خاوره، د رس ختّه، پرویزه، اوبه، مـخ ترونـی یـا د کـار جـامې، یـوه پلاسـتیکي کڅوړه، د اوبو لوښی. | |
| ۵- د ازروني لارې | ځاني کتنـه، د سـتاینې درجې، ( ډېرښـه، ښـه، منځنـۍ او ضـعیف) کتنـې او ارتبـاطي مـهارتونه. | |
| ۷- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **پوښتنې او ځوابونه:**<br>د رس ختـې د ځانګړتیـاوو پـه هکلـه چـې څـه ډول نقـش منوونکې ده او له هغې څخه د حجمونو د جوړولو طریقه. | وخت ۵ دقیقې |
| | **دانګیزې رامنځته کول:**<br>تر اوسه مو پخپل لاس ختین لوښي جوړ کړي دي؟ | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښـــوونکي د تـــدريس فعاليتونـــه (د مفـــاهيمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعاليتونه | |
|---|---|---|
| ۱- ښوونکی مکلفيت لري چې په عملي ډول لـه زده کوونکو سره کار وکړي.<br>۲- يوه انـدازه خـاوره د دوی پـه واک کـې ورکـړئ او هغه په يوه لوښي کې واچوئ او اوبه پرې اضافه کړئ او د ختې په جوړولو کې له زده کوونکو سره مرسته وکړئ.<br>۳- لـه زده کوونکـو سـره مرسـته وکـړئ چـې سـمه ختـه جوړه کړئ.<br>۴- د زده کوونکو کار په دقت وګورئ او د کتلو نتيجه له ځان سره نوټ کړئ. | ۱- زده کوونکي بايد په سمه توګه خټه جوړه کړي.<br>۲- خټه دې سـمه واغـږي، ترڅـو هـوايې ووځـي. هغه دې د کارکولو لپاره امتحان کړي.<br>۳- خټه د لاسو د فشار په واسطه کلوله يا ګردی کړئ.<br>۴- کلوله يا د (ختې پنډوسکي) پـه يـوه لاس کـې ونيسئ او د بل لاس په ګوتو په هغې کې سوري جوړ کړئ.<br>۵- څلور ګوتې د حجم په بانـدني ديـوال او د لاس لويه ګوته د حجم په دننه کـې کيـږدئ. د ګوتـو د فشار په واسطه يو ښکلی شکل جوړ کړئ. | |

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

ډېره ساده او په لاس کې لرونکی ماده چې زموږ په ګران هېـواد کـې پـه پراخـه پيمانـه پيدا کيـږي، خـاوره او ختـه ده انسانانو ختې ته د شکل ورکولو په سبب، ډېر زيات آثار توليد کـړي دي. دا آثـار ختـين لوښـي او حجمونـه دي. زده کوونکو د ختو کارولو تجربه تـر لاسـه کـړي او يـا بـه لـه هغـې سـره آشـنا شـوي نـه وي، دوی لـه ختـې سـره چـې د خصوصياتو له مخې يوه نرمه ، شکل منونکي او انځور منونکي ماده ده بلدتيا مومي او هغه تجربه کوي.

برجسته ډيزاينونه، معماري، او ابتکاري، لوښي او داسې نور مصرفي او هنري شيان، پخې خښتې، کاشي، هيکلونه د هغه آثارو له جملې څخه دي چې له ختو څخه جوړ شويدي.

موزيمونو ته تګ او يا د ګران هېواد په مختلفو سيموکې په ګرځيدو کـولی شـو، ډېـر ښـکلي سـفالي لوښـي ووينـو. د سفالي لوښود جوړولو اصلي ماده د رس خټه ده.

درس ختې د جوړولو لپاره، يوه ورځ مخکې درس خاوره په پرويزي چڼ کـړئ.يـو انـدازه خـاوره پـه يـوه لوښـي کـې واچوئ، لږې اوبه پرې واچوئ او په ورو،ورويې د اوړو په شان واخښئ، په سوکونو يې ووهئ، تر هغو چې ورسـيږي هر وخت چې ختې په لاسو پورې ونه سنښلي اوبه يې په اندزه دي. تياره شـوي ختـه پـه يـوه پلاسـيتکي کڅـوړه کـې وپيچي او ويې ساتئ.

د کار پر وخت لږڅه خته لوله کړئ او بيايې کرِه کړئ، خو په دې شرط چې چاودونه پکې پيدا نه شي. کـه چاودونـه يې پيدا کړل، خپل لاس لوند کړئ او د ګوتو په فشاريې سره ونښلوئ، ترڅو جوړ شي.

**پنځلسم لوست د تدریس د لارښود پلان**

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیک | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | **د لرغونو ځایونو( هندوستان، چین او جاپان) هنرونه** | |
| **۲-د زده کــــــــړې ( پــوهنیزې، مهــارتي او ذهنیتي موخې).** | له زده کوونکو څخه غوښتنه کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>۱- د هندوستان له لرغوني هنر سره بلد شي.<br>۲- د چین له لرغوني هنر سره بلدتیا پیدا کړي.<br>۳- د جاپان له هنر سره د زده کوونکو بلدتیا. | |
| **۳- د لوست ډولونه** | توضیحي او ګروپي بحثونه. | |
| **۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل** | د هند، چین او جاپان د هنر تصویرونه، که هغه په لاس کې نه وي، نو د درسي کتاب له تصویرونو څخه دې ګټه واخیستل شي. | |
| **۵- د ارزونې لارې** | ځاني کتنه، د ستاینې درجې( ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضعیف) کتنې او ارتباطي مهارتونه | |
| **۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | د زده کوونکو د احوال پوښتنه او د لوست د زده کړې لپاره د دوی چمتوالی. | وخت ۵ دقیقې |
| | **دانګیزې رامنځته کول:**<br>پوښتنې او ځوابونه.<br>آیا د هند، چین او جاپان په هکله په څه پوهیږئ؟ | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښــوونکي د تــدریس فعالیتونــه (د مفــاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ۱- ښوونکی مکلفیت لـري چې د هنـد، چـین او جاپان د هنرونو په هکله توضیحات ورکړي.<br>۲- ښــوونکی مکلــف دی چــې د ګروپونــو لنــډ معلومات جمع بندي او و ارزوي. | ۱- زده کوونکي باید د هند، چین او جاپان د هنرونو په هکله معلومات پیدا کړي.<br>۲- د هند، چین او جاپان هنرونه سره پرتله کړای شي.<br>۳- د همـدې هنرونـو پـه هکلـه پـه خپلـو ګروپونـو کـې سـره وغږیـږي. نتیجه یـې د نورو په وړاندې بیان کړئ. | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

په دې لوست کې دچین هنر اغیزه د جاپان پر هنر مطرح شویده. ددې هیوادونـو پـر دینـي عقیـدو، فرهنګ او هنري آثارو ټینګښت شویدي. د هند هنرته هم پکې ځای ورکړل شوي دی.

**شپاړسم لوست د تدريس د لارښود پلان**

**د تدريس موده (يو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| عنوان | د مطلبونو بيان | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | **اوبدنې، (جوړښتونه)** | |
| **۲-د زده کـــــــــــړې (پــــوهنيزې، مهــــارتي او ذهنيتي موخې).** | له زده کوونکو څخه غوښتنه کيږي چې د لوست په پای کې لاندې موخوتـه ورسيږي.<br>۱- له طبيعي او مصنوعي جوړښتونو سره د زده کوونکو بلدتيا.<br>۲- د طبيعي او مصنوعي جوړښتونو له رنگونو سره د زده کوونکو بلدتيا.<br>۳- د طبيعي او مصنوعي جوړښـتونو او د بـصري او لمـس کيـدونکو ارزښـتونو درک کول. | |
| **۳- د لوست ډولونه** | توضيحي، ليدل، گروپي مباحثه. | |
| **۴- د زده کړې د اړتياوړ وسايل** | د طبيعت تصويرونه، درسي کتاب، تخته، تباشير، پنسل او کاغذ. | |
| **۵- د ارزونې لارې** | ځاني کتنه، د ستاينې درجې، ( ډېرښه، ښه، منځنی او ضعيف) کتنې او ارتبـاطي مهارتونه. | |
| **۶- په ټولگي کې د تدريس او زده کړې فعاليتونه** | د زده کوونکو د احوال پوښتنه او د دوی تياري د طبيعي او مصنوعي جوړښتونو د زده کړې لپاره.<br>پوښتنې او ځوابونه د جوړښتونو په اړه. | وخت ۵ دقيقې |
| | **دانگيزې رامنځته کول:**<br>آيا تراوسه مو په خپلو نقاشيو کې طبيعي او مصنوعي جوړښتونه کارولی دي؟ | ۵ دقيقې |

| ۷- د ښــوونکي د تــدريس فعاليتونــه (د مفــاهيمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعاليتونه | |
| --- | --- | --- |
| ۱- ښوونکی مکلفيت لري چې طبيعي او مصنوعي جوړښتونه په عملي بڼه زده کوونکو ته وښيي.<br>۲- د جوړښتونو د رنگونو په هکله زده کوونکو ته توضيحات ورکړي.<br>۳- د جوړښتونو د رنگونو ظرافتونه دوی ته ور وښيي. | ۱- زده کــوونکي بايــد پــه مــصنوعي او طبيعي جوړښتونو وپوهيږي.<br>۲- ليدونکي او لمس کيدونکي جوړښتونه درک کړي.<br>۳- د بيلابيلو جوړښتونو درک کول.<br>۴- پخپلو نقاشيو کې بيلابيل جوړښتونه وکاروي. | |

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

په دې لوست کې زده کوونکي له مختلفو اوبدنو سره آشنا کېږي. له هغوی وغواړئ چې په خپل چاپيريال کې طبيعي او مصنوعي جوړښتونه په غور وگوري، په ټولگي کې پرې وغږيږي. زده کوونکي په اووم او نولسم لوستونو کې د سيم په واسطه د هندسي حجمونو جوړول تجربه کوي. په دولسم او څورلسم لوستونو کې د حجمونو له جوړولو وروسته د گلانو او ډيزاينونو په واسطه جوړښتونه يا بېلې بېلې اوبدنې د حجم د سطحې په مخ جوړوي، ترڅو ښکلابې زياته شي. په اولسم لوست کې د حجمونو رنگه کول، بصري اوبدنې را منځ ته کوي.بايد په دې وپوهيږو چې دا ځانگړتياوې د وخت په تيريدو سره بدلون مومي. د زده کوونکو له فزيکي پراختيا سره سم د دوی ذهن هم پراختيا مومي او واقعي نړۍ ته ورنږدې کېږي. دوی لږ لږ تناسبونو، اندازو اوجوړښتونو ته پاملرنه کوي. او بدنې د يوه شکل ظاهري پوښ دی چې کله يوازې په ليدلو، کله په لمس کولو احساسيږي او بصري لامسي ارزښت لري. جوړښتونه په دو وډلو ويشل شوي دی، يو طبيعي جوړښتونه او بل يې مصنوعی جوړښتونه دي.

**اوولسم لوست د تدریس د لارښود پلان**
**د تدریس موده ( یو درسي ساعت**
**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیک | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **د ختېنو حجمو رنګول** | |
| ۲-د زده کـــــــړې ( پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې). | له زده کوونکو څخه غوښتنه کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>۱- د ختېنو لوښو له جوړولو او رنګه کولو سره بلد شي.<br>۲- د ختېنو لوښو له جوړولو سره علاقمندشي.<br>۳- د ختېنو حجمونو په ارزښت وپوهیږي. | |
| ۳- د لوست ډولونه | عملي، کتنې، توضیحي، ګروپي غږیدنه. | |
| ۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل | آبي رنګونه، مویک، د رس خټه، د اوبو لوښي، پلاستیکي چاړه، مخ ترونی یا د کار جامې، پلاستیکي کڅوړه. | |
| ۵- د ارزونې لارې | ځاني کتنه، د ستاینې درجې، ( ډېرښـه، ښـه، منځنی او ضـعیف) کتنې او ارتبـاطي مـهارتونه. | |
| ۶- پـه ټـولګي کـې د تـدریس او زده کـړې فعالیتونه | **لومړنی فعالیت:**<br>پوښتنې او ځوابونه د ختین حجم د نقاشـي کولـو او رنګـه کولـو په اړه. | وخت ۵ دقیقې |
| | **دانګیزې رامنځته کول:**<br>آیا تر اوسه مو کوم خاورین حجم رنګه کړی دی؟ | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ۱- ښوونکی مکلفیت لري چې یو ختمین نقاشي شوی او رنګه شوی لوښی زده کوونکو ته وښیي.<br>۲- د هغې د ظرافت په هکله دوی ته معلومات وړاندې کړي.<br>۳- د ختمین حجم د ډیزاین کولو په هکله دې زده کوونکو ته معلومات ورکړي.<br>۴- د هغه د رنګه کولو په هکله دې لازمې لارښوونې وکړي. | ۱- یو ختمین حجم ډیزاین کړای شي.<br>۲- د ظرافتونو په رنګه کولو کې غور او دقت وکړي.<br>۳- ښکلاوې په پام کې ونیسئ.<br>۴- د ښوونکي مشورې په پام کې ولري. | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

په دې فعالیت کې زده کوونکي پخپل لاس جوړشوي حجمونه رنګه کوي. د حجم د مختلفو سطحو رنګونه باید سره هم غږي ولري، له هرې زاویې څخه چې لوښي ته وګورو، باید ښکلی ښکاره شي. زده کوونکي کولی شي چې د ختمین لوښي د رنګولو لپاره مختلفې طرحې وړاندې کړي. دا طرحې باید د لوښي له شکل سره هم غږي ولري، لکه: ( د درسي کتاب تصویرونه)، سربېره پردې په دې فعالیتونو کې زده کوونکي پر حجم د ذهني نقاشي رنګول سرته رسوي.

**اتلسم لوست د تدریس د لارښود پلان**

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| **سرلیک** | **د مطلبونو بیان** | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | **د لرغوني یونان او روم هنرونه** | |
| **۲-د زده کـــــــــــړې (پـــــوهنیزې، مهـــارتي او ذهنیتي موخې).** | له زده کوونکو څخه غوښتنه کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>۱- د لرغوني یونان او روم له هنرونو سره د زده کوونکو بلدتیا.<br>۲- د لرغوني یونان او روم د هنرونو د کار له طریقې سره بلدتیا.<br>۳- د یونان او روم د هنرمندانو د کار په طریقې پوهېدل. | |
| **۳- د لوست ډولونه** | کتنې، توضیحي او گروپي بحثونه | |
| **۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل** | درسي کتاب، د موضوع په اړوند نور کتابونه، تاریخي تصویرونه. | |
| **۵- د ارزونې لارې** | ځاني کتنه، د ستاینې درجې، ( ډېرښه، ښه، منځنی او ضعیف) کتنې او ارتباطي مهارتونه. | |
| **۶- په ټولگي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | **لومړنی فعالیت:**<br>ددې لوست په اړه پوښتنې او ځوابونه.<br><br>**دانگیزې رامنځته کول:**<br>آیا د یونان او روم هنرونه سره پرتله کولی شئ؟ | وخت ۵ دقیقې<br><br>۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ۱- ښوونکی مکلفیت لري چې د یونان او روم د هنرونو په هکله معلومات وړاندې کړي.<br>۲- د یونان او روم د هنرونو توپیرونه زده کوونکو ته بیان کړي.<br>۳- د روم هنر له کوم ځای سرچینه اخلي په اړه يې معلومات ورکړئ. | ۱- زده کوونکي باید د یونان او روم په هنرونو وپوهیږي.<br>۲- د یونان او روم هنرونه سره پرتله کړای شي.<br>۳- باید پدې وپوهیږي چې د روم هنر له کوم ځای څخه سرچینه اخلي. | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

په دې لوست کې له طبیعت څخه مخامخ انځورګري او هیکل جوړونه د واقعي عالم څخه په تقلید کولو پیل شوه. په دې آثارو کې عیني لیدنې په ذهنې لیدنو غلبه پیداکړه. هنرمند د طبیعت ښکلا او هغه څه چې په سترګو لیدل کېږي. د هغې ستاینه یې وکړه او انځورګري پیل شوه، هڅه یې وکړه چې له هغې څخه تقلید وکړي. هنر او فرهنګ دملتونو د هویت څرګندوي دی. د تاریخي لاملونو پیژندنه چې د هر هېواد په جوړیدو ( شکل ګیري) کې ډېر تاثیر لري. هنر او فرهنګ د هر ملت د هویت (پیژندګلوي) ټاکونکي دی. د تاریخي لاملونو پیژندنه چې د هر هېواد په جوړیدو ( شکل ګیري) کې تاثیرلري.د هنر او فرهنګ د ارزښت بیان له ( پخوا څخه تراوسه) د ملتونو په سرنوشت کې، د نوي نسل د زده کړې له ضرورتونو څخه دي. له دې امله د هنر تاریخ د هر هېواد د تاریخ سهم جز دی چې د تاریخ په اوږ دو کې دملتونو د فکري بدلونو او اساسي تغییراتو بنسټ اینښودونکي دی. د هر هېواد له هنر او فرهنګ سره بلدتیا او پیژندنه، ساتنه، رواجولو او د هنري آثارو تولید د ملتونو د انکشاف سبب ګرځي. نو ځکه په دې تحصیلي دوره کې چې د ځوانانو شخصیت د جوړیدو په حال کې دی، ستر ارزښت لري. هغه ځوانان چې له خپل تاریخ، هنر او فرهنګ سره پوره بلدتیا ولري، هیڅکله ځان نه بایلي او د نورو د فرهنګي یرغلونو تر اغیزې لاندې نه راځي.

**نولسم لوست د تدریس د لارښود پلان**

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

<table>
<tr><th>سرلیک</th><th colspan="2">د مطلبونو بیان</th></tr>
<tr><td>۱- د لوست موضوع</td><td colspan="2">د بیلابیلو سیمي حجمونو جوړیدل:</td></tr>
<tr><td>۲-د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې).</td><td colspan="2">له زده کوونکو څخه غوښتنه کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>۱- له بیلابیلو سیمي حجمونو سره بلدتیا.<br>۲- د بیلابیلو سیمونو حجمونو له جوړولو سره بلدتیا.<br>۳- د یوه سیمي حجم جوړول (کب، الوتونکي).</td></tr>
<tr><td>۳- د لوست ډولونه</td><td colspan="2">پوښتنې او ځوابونه، توضیحي، د کاریووالی، انتقادي تفکر.</td></tr>
<tr><td>۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل</td><td colspan="2">نرى پوست، پوښ لرونکی سیم یا هغې ته ورته، لکه پرۍ، د غنمو ډنډر، رنګه کاغذ، یوه ټوټه لرګی چې لس سانتي متره وي، سلښت او د ښکلا لوښي.</td></tr>
<tr><td>۵- د ارزونې لارې</td><td colspan="2">ځاني کتنه، د ستاینې درجې، ( ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضعیف) کتنې او ارتباطي مهارتونه.</td></tr>
<tr><td rowspan="2">۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه</td><td>د سیم د قابلیتونو او یا د ورته وسیلو په هکله پوښتنې او ځوابونه چې د حجم جوړولو لپاره مناسب دي، لکه: د کب او یا د الوتونکی شکلونه.</td><td>وخت<br>۵ دقیقې</td></tr>
<tr><td>دانګیزې رامنځته کول:<br>د پوښتنې طرحه کول: د یوه کب او الوتونکي د جوړولو لپاره څه کوی؟</td><td>۵ دقیقې</td></tr>
</table>

| ۷- د ښـــوونکي د تـــدريس فعاليتونـــه (د مفاهيمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعاليتونه | |
| --- | --- | --- |
| ۱- ښـوونکی مکلفيـت لـري چـې د سيمي کرۍ د جوړولو په هکله له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي.<br>۲- د سيمي کرۍ د جوړولو طريقې په هکله توضيحات ورکړي.<br>۳- د زه کوونکـو فعاليتونـه پـه دقيقـه توګـه وګـوري او د کتنـې نتيجـه ثبت کړي. | ۱- د سيمي کرۍ د جوړولو په هکله سره وغږيږئ.<br>۲- سيم يا ورته وسيلې ټولګي ته راوړي.<br>۳- سيم د لرګي په ټوټه وپيچي.<br>۴- د سيم پيچلوته ادامه ورکړي، ترڅو چې د کـب يا الوتونکي شکل غوره کړي.<br>۵- سترګې،مـښوکه، وزرونـه او لکـۍ پـرې اضـافه کړي، ترڅو شکل بشپړ شي.<br>۶- جوړ شوي شکلونه ننداريې ته وړاندې کـړي او پرې وغږيږي. | |

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

زده کوونکي په دې لوست کې غير هندسي حجمونه تجربه کوي. د سيم اويا د بلې ورته وسيلی د پيچلو او يو په بل کې د ننه ايستلو په واسطه خط په يوه غير هندسي حجم بدلوي چې اوبدنې مـنځ تـه راځـي. هندسـي او غيـر هندسي حجمونو ته که په طبيعي شکل او يا د انسانانو په لاس جوړ شوي وي، د زده کوونکو پـام ور واړوئ. ډېـر پيژندل شوئ هندسي حجم په طبيعت کې کره ده چې هغه په ميوو کې ډېر ترسترګو کېـږي. پـه سـتورو او ځمکـه کې چې موږ ژوند پکې کوو، ډېر کروي حجمونه لري. که څه هم موږ هغـه مـسطح وينـو. پـه طبيعـت کـې غيـر هندسي حجمونه په زياته پيمانه وجود لري. د کبانو بـدن، د ونـو سـټې ( تنـه)، غرونـه، غونـډۍ، د ډېـر وبـېلا بېـل دولونه او الوتونکي غير هندسي حجمونه دي چې فضا يې اشغال کړيده.

**شلم لوست د تدریس د لارښود پلان**

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیک | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | **د مسیحیت هنر** | |
| **۲-د زده کـــــــــړې (پـــوهنیزې، مهـــارتي او ذهنیتي موخې).** | له زده کوونکو څخه غوښتنه کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>۱- زده کوونکي د صدر مسیحیت له هنرونو سره بلدتیا پیداکړي.<br>۲- په مسیحیت کې د بیزانس له هنر سره د زده کوونکو بلدتیا.<br>۳- له گوتیک له هنري طریقې سره د زده کوونکو بلدتیا. | |
| **۳- د لوست ډولونه** | پوښتنې او ځوابونه، نندریزه، توضیحي ، انتقادي تفکر. | |
| **۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل** | درسي کتاب، د لوست اړوند تصاویر. | |
| **۵- د ا رزونې لارې** | ځاني کتنه، د ستاینې درجې، ( ډېرښه، ښه، منځنی او ضعیف) کتنې او ارتباطي مهارتونه. | |
| **۶- په ټولگي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>زده کوونکي دې په درو گروپو وویشل شي د صدر مسیحیت، بیزانس او گوتیک په هنرونو دې سره وغږیږي. | وخت۵ دقیقې |
| | **دانگیزې رامنځته کول:**<br>آیا د نړۍ د هنر له تاریخ سره مو بلدتیا درلوده؟ | ۵ دقیقې |

| **۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه)** | **د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه** | |
|---|---|---|
| ۱- ښوونکی مکلفیت لري چې د صدر مسیحیت، بیزانس او گوتیک د هنرونو په هکله توضیحات ورکړي.<br>۲- ښوونکی دې د گروپونو په فعالیتونو کې له زده کوونکو سره مرسته وکړي.<br>۳- ښوونکی دې د هر گروپ فعالیتونه تر پام لاندې ونیسي او هغه دې و ارزوي او نتیجه دې ثبت کړي. | ۱- زده کوونکي دې د ښوونکي توضیحاتو ته پوره پاملرنه وکړي.<br>۲- زده کوونکي دې د لوست په هکله پخپلو گروپو کې سره غږېږي.<br>۳- د لوست د مهمو برخو یاداشت کول. | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

په دې لوست کې د مسیحي هنر بیان شویدي. په دې هنر کې ذهني لیدنې په عیني لیدنوغلبه لري، چې هنرمندانو د ذهني لیدلو نقاشي او هیکلونه نندارې ته وړاندې کړیدي، هڅه يې کړیده چې خپلو آثاروته روحاني او معنوي ارزښت ورکړي. د دې آثارو ارزښتنا که موضوع د حضرت مسیح (ع) او بي بي مریمې د ژوندانه مختلفې صحنې دي. د کلیساوو جوړول او ښکلي کول چې د مسیحیانو د عبادت ځایونه دي، د مسیحي هنرمندانو د ارزښتونو له دندو څخه وې.

**یوویشتم لوست د تدریس د لارښود پلان**

**د تدریس موده (یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیک | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | **له طبیعي موادو څخه دلاسي کار جوړول:** | |
| **۲-د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې).** | له زده کوونکو څخه غوښتنه کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>۱- له طبیعي موادو څخه د لاسي کار په جوړولو، د زده کوونکو پوهیدنه.<br>۲- زده کوونکي د لاسي کار په ارزښت وپوهیږي.<br>۳- د لاسي کار ارزښت درک کړای شي. | |
| **۳- د لوست ډولونه** | پوښتنې او ځوابونه، توضیحي، د کاریووالی، انتقادي تفکر | |
| **۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل** | کوچنۍ ډبرې، د ونو پاڼې، زړې یا مندکې، کاغذ، بیاتي، د ونو د تنې پوټکي، د الوتونکو بڼکې، گل پاڼې او سلښت. | |
| **۵- د ارزونې لارې** | ځاني کتنه، د ستاینې درجې، ( ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضعیف) کتنې او ارتباطي مهارتونه. | |
| **۶- پـه ټـولگي کـې د تـدریس او زده کـړې فعالیتونه** | د زده کوونکو د احوال پوښتنه ، پوښتنې او ځوابونه له طبیعي موادو څخه بې په گټه اخیستلو د لاسي کار په جوړلو پیل وکړئ. | وخت<br>۵ دقیقې |
| | **دانگیزې رامنځته کول:**<br>د درس په هکله د پوښتنې طرحه کول د مثال په توگه: له کومو موادو څخه لاسي کارجوړولی شو؟ | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښــوونکي د تــدریس فعالیتونــه (د مفــاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ۱- ښوونکی دې د پوښتنو په طرحه کولـو لوسـت پیل کړي.<br>۲- د لاسي کـارد جوړولـو پـه بـاب دې توضـیحات ورکړي.<br>۳- د زده کوونکو کارونه دې وګوري او نتیجه دې پې ثبت کړي. | ۱- زده کـوونکي دې د ښـوونکي پوښـتنو ته په غور او دقت غوږ ونیسي.<br>۲- زده کوونکي دې د لاسي کار پـه هکلـه سره وغږیږي.<br>۳- خپل جوړ شوي لاسـي کارونـه دې پـه ټولګي کې ننداري ته وړاندې کړي. | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

په دې لوست کې یوه حیرانوونکي تجربه د طبیعـي جوړښـتونو د را ټولولو،لکـه: د ونوپـاڼې، ښـاخونه، د ونـو پوټکي ترلاسه کېږي. بېلابېلې ډبرې، زړي ( مندکې) د الوتونکو بڼکې اوهر هغه څه چې په چاپیریال کې پیدا کېږي د یوه لاسي کار لپاره په کاریږي.رنګونه، شکل او جوړښتونه زده کوونکي یـوه آشـنا شـکل تـه هڅـوي هغوی کولی شي چې د دې ځانګړتیاوو په اساس د شکلونو په لټولوپیل وکړي، بیا دې د شـکل پـه جوړولـو بوخت شي او یو ښکلی لاسي کار دې جوړ کړي. د ذهن، سترګو او لاسونو تـرمنځ د شـیانو او حجمونـو پـه جوړولو کې هم غږی شتون لري. زده کوونکي لومړی شکل لټونه او بیا په شکل جوړونه پیل کوي.
په شکل لټونه کې، زده کوونکي په خپل چاپیریال کې هره خوا ګوري او کوښښ کوي، هغه مـواد چې کـوم شکل ته ورته وي، پیدا کړي، لکه: یوه ټوټه تیره، یوه ټوټه لرګی، چې امکان لري یوه الوتونکي تـه ورتـه وي سبنوکه او سترګي بې له رنګه موادو څخه جوړي کړي چې بشپړ شي. په شکل جوړونـه کـې مـواد د خپلـې ذهني طرحې په شان شکل ته بدلون ورکوي. تیاروي یې ، څنګ په څنګ یې کېنیږدي او یا یې یـو لـه بـل سره وصل کوي، ترڅو هغـه څـه چې غـواړي جـوړیې کـړي. د مثال په توګـه د رس لـه ختې څخـه د یـوه الوتونکي جوړېدل.

**دوه ویشتم لوست د تدریس د لارښود پلان**

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیک | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | **د افغاني هنرمندانو پیژندنه** | |
| **۲-د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې).** | له زده کوونکو څخه غوښتنه کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>۱- زده کوونکي افغاني هنرمندان وپیژني.<br>۲- د هنرمندانو هنري آثاروته ارزښت ورکړي.<br>۳- د آثارو ارزښت او د کار طریقه یې درک کړای شي. | |
| **۳- د لوست ډولونه** | توضیحي،عملي، مباحثه، کتنې | |
| **۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل** | درسي کتاب: دهنرمندانو په هکله لیکل شوي کتابونه او تصویرونه، قلم او کاغذ. | |
| **۵- د ارزونې لارې** | ځاني کتنه، د ستاینې درجې، ( ډېرښه، ښه، منځنی او ضعیف) کتنې او ارتباطي مهارتونه. | |
| **۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | **د زده کوونکو داحوال پوښتنه:**<br>زده کوونکی دې په ګروپونو وویشل شي او د هنري شخصیتونو په هکله دې وغږیږي او پایلې دې نوروته ووایي. | وخت<br>۵ دقیقې |
| | **دانګیزې رامنځته کول:**<br>په خپله منطقه کې کوم هنرمندان پیژنئ؟ | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ۱- ښوونکی مکلفیت لري چې د درې واړو هنري شخصیتونو په اړه توضیحات ورکړي.<br>۲- د هنري شخصیتونو په اړه پوښتنې طرحه کړئ.<br>۳- د پوښتنو نتیجه ارزیابي او ثبت کړئ. | ۱- زده کوونکي دې د ښوونکو خبروته دقیق غوږ ونیسي.<br>۲- پوښتنوته دې سم ځوابونه ووايي.<br>۳- زده کوونکي دې د لوست په پای کې ځاني ارزونه پیل کړي. | |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

دا لوست د افغانستان ډېر مشهور هنرمندان، لکه استاذ غلام محمد میمنګي ، استاذ عبدالغفور برشنا او غوث الدین غوثي معرفي کوي. د هریوه د ژوند شرحه په لنډ ډول بیان شویده او تاثیرېې د افغانستان په تجسمي هنرونوکې بیان شویدي. د افغانستان د هنر له تاریخ سره جوخت د افغاني هنرونو لوستونه او د اسلامي دورې د دودونو او رواجونو ادامه په معاصر فرهنګ کې ښيي، د هېواد په هنري مکتبونوکې د بېلا بېلو طریقو او روشونو روزنه په معاصر ډول بیانوي، هغه څه چې د افغانستان د معاصر هنر په تاریخ پورې اړه لري، وړاندې شوي دي.

همدارنګه د افغاني هنرمندانو د پېژندګلوي په برخه کې په هر ټولګي کې وتلي هنرمندان معرفي شویدي، ترڅو زده کوونکي د دوی له هنري حرکتونو سره بلدشي.

د تاریخي ودانیو، موزیمونو، هنري ګالري، د هنر تاریخ، د لاسي کارونو دوکانونه او بازارونه په هر ولایت کې د مشهورو هنري څیرو، په مختلفو برخوکې فرهنګي او د هنري فعالیتونو پیژندنه د دې سبب کېږي، چې په زده کړه کې تعمق او ټینګښت رامنځته کوي. د نړۍ تاریخ داسې وړاندې شویدي چې زده کوونکي نه یوازې د تاریخ په اوږدوکې د نړۍ د هنري آثارو په ارزښت وپوهیږي، بلکې د تاریخ په اوږدوکې له فرهنګي بدلونونو سره بلدشي.

## دافغانستان له ملي موزيمونو سره بلدتيا

موزيم داسې ځای یا ودانۍ ده چې د هیواد تاریخي،فرهنګي اثار په کې ساتل کیږي.د هنري او تاریخي نمونو ساتل په فرهنګی لحاظ د ډیر ارزښت وړ دي.د تاریخي اثارو د ساتنې لپاره دولت موزیمونه جوړوي. د افغانستان ملي موزیم په ۱۲۹۲ هـ ش کال کې د عجایب خانې په نوم بنسټ کیښودل شو.په لومړنیو وختونو کې په هغه کې خطي نسخې،د قرانکریم تفسیرونه،په لاس ګنډل شوي توکي،حربي وسیلې او بیرق ساتل کیدل.دا اثار د ۱۳۰۷او ۱۳۰۸ هـ ش کالو د ځان بوږ نوونکو پیښنو تر بریدونو لاندې راغلل، پاتې شونې یې په ۱۳۰۸ هـ ش کال کې یوې بلې ودانۍ ته یوړل شول. د کابل د موزیم تر عنوان لاندې یې خپل مناسب فعالیت پیل کړ.په ۱۳۳۹ هـ ش کال د یونسکو د هیأتو په مرسته د موزیم تشکیلات د علمي معیارونو په پام کې نیولو سره اصلاح کړای شول. د کابل موزیم په ۱۳۵۲ هـ ش کال کې د افغانستان د ملي موزیم په نوم یاد شو.

په ۱۳۵۳ هـ ش کال کې د هغه الماری او ویترینونه په عالي شکل ډیزاین شول،تر څو اثار په کې ننداریې ته کښیښودل شي، نوې ځانګې په کې جوړې شوې، تر څو د هغې بیا جوړونه تر سره شي، پر هغې سربیره هنری اثار فهرست بندي هم شول. د کورنیو جګړو په پیل سره په ډیر تاسف چې ډیر کالونه یې دوام و موند،ملي موزیم مناسبه پراختیا ونه موندله.

د افغانستان په ملي موزیم کې د هیواد د بېلو بېلو سیمو ډیر زیات شمیر اثار د بېلا بېلودورو، لکه: د ډبرو دورې،د برونزو دورې او د اوسپنې دورې پورې اړه لري،ساتل کیږي.

سربیره پر دې یو زیات شمیر اثار د لومړنیو مدنیتونو لکه: مدنیت کریکو باختري، کریکو بودیک او د ګندهارا مدنیت په دې موزیم کې ساتل کیږي.

# د منابعو فهرست


۱- رهنماي تدريس نقاشي د ماشومانو او نوو ځوانانو لپاره غلام محي الدين شبنم غزنوي ۱۳۸۰

۲- رهنماي درسي هنر د ابتدايي دورې د لومړي، دويم او دريمو ټولګيو د ښوونکو لپاره کوډ۵۳/۴/ ۱۳۸۵

۳- رهنماي مواد و اسلوب هاي طراحي و نقاشي رويين پاکبار.

۴- مباني هنري هاي تجسمي، فني و حرفوي کوډ ۲۱/ ۳۸۵، ۱۳۸۶

۵- اصول و مباني هنر هاي تجسمي، ډکتر محمد حسين حليمي.

۶- طرح و شکل (کلاس مقدماتي من درباهاوس)، يو هانس ريتن.

۷- طراحي فني و حرفه يي: کوډ ۳۵۹/۹۲، ۱۳۸۶

۸- د رنګ کتاب ايتن.

۹- کارګاه چاپ دستي ۱ فني و حرفه اي کوډ ۳۵۹/۹۲، ۱۳۸۶

۱۰- دايرة المعارف هنر: رويين پاکبار.

۱۱- تاريخ هنر: ارزښت کامبريچ، نشرات تهران، ۱۳۸۰

۱۲- د نړۍ د هنر تاريخ فني و حرفه اي کوډ ۴۰/ ۳۵۸و ۷/ ۴۷۰، ۱۳۸۶

۱۳- سيرهنر در تاريخ ۱، د پوهنځي مخکې، کوډ ۵۹۴/۳، ۱۳۸۶

۱۴- افغانستان ( د مقالو مجموعه) ژباړه هوشنګ اعلم و مرتظي اسعدي.

۱۵- فشرده تاريخ افغانستان، فاروق انصاري د کابل دمطالعاتو مرکز ۱۳۸۶

۱۶- تاريخ مختصر افغانستان، عبدالحي حبيبي.

۱۷- تاريخ خط و نوشته هاي کهن افغانستان، عبدالحي حبيبي.

۱۸ موزيم پېژندنه اوپه افغانستان کې دموزيمونوتګ لاره داتنوګرافي اولرغون پېژندنې ډيپارټمنت د اجتماعي علومو پوهنځی د کابل پوهنتون استاد محمدرسول باوري.۱۳۷۵